# د ډالرو مرګ




لیکوال: اېډېسن وېګن
ژباړه: میراحمد یاد

چاپچارې:
دويې ټولنې تخنيکي څانګه

ډالۍ:

په افغانستان کې د معاصرې بانکدارۍ موسس او د اقتصاد پخواني

وزير

عبدالمجيد زابلي

په نوم

ياد

## د کتاب ځانګړني:

د کتاب نوم: د ډالرو مرګ

لیکوال: ایډیسن ویګن

ژباړه: میراحمد یاد

خپرندوی: مومند خپرندویه ټولنه - جلال اباد

برېښنالیک: momand.books@gmail.com

ډیزاین: هدایت الله عادل ۰۷۰۰۸۱۴۲۴۴

چاپشمېر: ۲۰۰۰ټوکه

چاپ وار: لومړی

چاپنېټه: ۱۳۹۳ لمریز

چاپځای: د مومند خپرندویې ټولنې تخنیکي څانګه

## د ترلاسه کولو پتې:

عبدالمجید مومند کتاب پلورنځی، مخابراتو څلور لارې - جلال آباد. اړیکې: ۰۷۰۰۶۲۶۱۶۱ / ۰۷۷۷۶۲۶۱۶۱

خوست: غرغښت کتاب پلورنځی رحیمي کتاب پلورنځی، لمر کتاب پلورنځی، او سباوون کتاب پلورنځی. ګردېز: علمي کتاب پلورنځی ۰۷۷۲۲۸۸۱۹۰، حمید ګردېزي مارکېټ پکتیکا (شرنه): مجاهد کتاب پلورنځی / کابل: اصلاح و افکار کتاب پلورنځی، خیبر کتاب پلورنځی او مستقبل کتاب پلورنځی. هلمند سیدجمال الدین کتاپلورځی، عرفان کتاب پلورنځی د پوهنتون سرک - کندهار ۰۷۰۰۳۳۸۷۶۵. - لمر کتابخانه خوست، افغان کتابخانه کندهار

غزني: قیومي کتابخانه ریاست برق ته مخامخ

# لیکلړ

## ﴿ یادونه ﴾

دې کتاب دوه برخې لرلې، چې دوو جلا جلا لیکوالو لیکلې و، د کتاب دویمه برخه هم تر ډېره د همدې لومړۍ برخې تکرار و، د یو څه جزیاتو په زیاتولو. پرېکړه مې وکړه چې یوازې لومړۍ برخه یې وژباړم؛ خو په لومړۍ برخې کې نه پوهېږم، ولې مې داسې احساسوله، چې د کتاب اصلي (امریکایي) لیکوال په ځینو خایونو کې خبره اوږده کړې او یا یې ځینې خبرې ډېرې تکرار کړې دي، ما هڅه کړې ځینې هغه تکرار خبرې ونه ژباړم. لامل یې دا و، چې یو خو په عمومي ډول لوستونکو سره د کتاب لوستلو ډېر وخت نه وي، دویمه مسله دا ده، چې زموږ د کتابونو بازار هم دومره تېز ندی، چې پنډ او غوښن کتابونه دې پکې وپلورل شي. ما هڅه کړې هغه ډېرې او پرمحتوا خبرې په لږو مخونو کې وژباړم، هیله ده چې پدې کار ملامت نشم

په درنښت

یاد

# د ډالرو د زوال پيل

د سرچينو په وېنا د نړۍ تر ټولو ښکلې ښځه (ګايسلې بندچن) په امريکا کې، د ماډلنګ حق الزحمه په يورو غواړي، ددې په يوې نوې وېډيو کې (رېپر جې- زيډ) په ډېر فاتحانه انداز يورو په لاس کې نيولې او مسکا يې په شونډو خپره ده په ۲۰۰۷ کال کې د منتې ورځ (Thanksgiving Day) پر سبا د ګټې ارمانجنو امريکايي خورده پلورنکو خپل دوکانونه بېرته کړل، دا هغه دوکانداران وو، چې د بحر څخه را اوښتو سيلانيانو لپاره يې خپل دوکانونه سحر وختي بېرته کړل، د نيويارک کوڅې او سرکونه له سيلانيانو ډک وو او خلک په سودا اخستلو بوخت وو، په همدې وخت کې يوه برطانوي ښځه د تلويزوني کامرې مخې ته راغله او ويې ويل:

«ما خپل ۲۰۰۰ ډالر، پدې روليکس ګړۍ خوندي کړله.

کاناډايي لوني (Loonie) له ۱۹۷۶ز کال راهيسې، د لومړي ځل لپاره ډالر سره مساوي شوې ده ښکلې مخونه، نهيلي امريکايي دوکانداران، خوښ سيلانيان او پيرودونکي او کاناډايي لوني- دې ټولو په رښتيا زمونږ د اقتصاد تخته اړولې ده. دا څه کيږي؟!

که څه هم ګايسلې د يورو معاوضې اخستو په اړه د دعوې غندنه نده کړې؛ خو دا کيسه له (بلوم برګ) او (سی اين بي سي) چينل نه تر انټرنټ پورې، په ټول رسنيز ځنګل کې د اور په څېر خپره شوه او خلک يې په اړه خبرې کوي د نيويارک په کوڅو کې ډالرو خپل ارزښت له لاسه ورکړی و، دا چې په نوره نړۍ کې به يې څه حال و، پدې اړه د څه ويلو اړتيا نشته لنډه دا چې د لوی ډالر کيسه نوره په

خښېدو ده. د یورو مالي ارزښت د ډالر په پرتله ۵۰ سلنه زیات شوی دی او په برطانیه کې تاسو د یوه پاونډ په مقابل کې دوه ډالر ښه په اسانه ترلاسه کولای شئ.

زمونږ په لسو کې اوه ډالر د سوداګریزو توکو او خدماتو پرخای د کریډټ یا پور اخستلو له لارې ترلاسه کیږي، ځکه مونږ په سپکو او ارزانه پورونو عادت شوي یوو. لومړی د (فیډرل ریزرو) اوږدمهالي مشر (ایلن ګرنس پین) پدې کار عادت کړو او اوس نوی مشر (برنانک) هم د ایلن په لاره روان دی. دی هم د هماغې پخوانۍ پالیسۍ پلوي دی، چې وايي « پور کومه ستونزه نده، تاسو چې څومره غواړئ مصرف وکړئ، مونږ به تاسو ته نوي ډالر چاپ کړو.»

په ۲۰۰۷ز کال کې د پینګوین پرس له خوا په خپاره شوي خپل ژوند لیک. (د شورش دور) کې ګرینس پین ویلي وو: «زما په فکر د وړو پورونو ډېر خپرل مناسب ندي، تاسو به کیدای شي ما خشک مزاجه وګڼئ؛ خو دا حقیقت دی چې، که دا پورونه خپرل شوي وای نو د ۵۵ سلنه هغو پورونه مخه نیول کېده چې د فیډرل ریزرو تر څارنې لاندې بېلابېلو کمپنیو ورکړي وو. زه د ۲۰۰۵ او ۲۰۰۲ کلونو تر وروستیو پورې پدې اړه نه پوهېدم، چې د وړو پورونو او کورونو پروژې دا بوکانۍ (حباب) به چوي او دومره ستر اقتصادي بحران به رامنځته کوي، چې کنترول به یې ناشونی وي.

د ۲۰۰۷ز کال په لومړۍ او دریمې ربعې کې، حکومت د نړۍ د ټولو بانکونو رهبرو امریکایي بانکونو د تاوان ورکول ومنل، چې پکې د سیټي ګروپ ۴۸.۱۱ میلیارده، د میرل لنچ ۳۸.۸ میلیارده، د مورګن ستېنلي ۲۸.۴ میلیارده او د بارکلي ۷.۲ میلیارده ډالر

۴۴ میلیارده ډالر تاوان شامل وو . یوازې په څلورمې ربعې کې مونږ پخپلو سترګو ولید.
ددې طوفان ننبې تراوسه ښکاري، اکتوبر کې د امریکا (کامرس ډیپارټمنټ) راپور ورکړی و ، چې د کورنو د جوازونو ګراف، تېرو ۱۴ کلونو کې تر ټولو ټیټې سطحې ته راغلی دی. د سان فرانسیسکو په خبر، خرابو بازارونو کې ساختماني سوداګر اړ شول، چې د کورونو بیې تر ۵۰ سلنه ښکته کړي د بازارونو دا انجماد د ۲۰۰۲ کال له اکتوبر څخه تر ۲۰۰۷ کال اکتوبر پورې دوه برابره شوی و ، د جان سمپټف شرکت مشر (ویلز فارګو ) وېل چې: «له ۱۹۳۰ز کال له نړیوال بحران څخه وروسته، تراوسه مونږ په ساختماني سکتور کې له داسې بد بحران سره نه یو مخ شوي، هغه پدې باور و ، چې کېدای شي په راتلونکیو ورځو کې دا بحران نور هم قوي شي. له بده مرغه دا خبره ربښتیا شوه. د امریکایي حکومت د کامرس ډیپارټمنټ په وېنا د ۲۰۰۷ کال تر پایه د نویو کورونو خرڅلاو تر ۳۰ سلنه کم شوی دی، چې دا له ۱۹۸۰ کال راپدېخوا تر ټولو بد حالت دی.
(بزنس ویک ) د امریکایي ولس د حالت په اړه، په ۲۰۰۷ز کال کې زما د خوښې سرلیک ولیکه:

(The economy on the Edge)

«امریکایي اقتصاد د ګړنګ پر غاړه»

آیا پدې اړه کوم ښه خبر شته؟ هو ! ښه خبر دا دی، زمونږ هوښیار پانګوال چې کوم اقدامات کوي، هغه یوازې له خپلې بې وسۍ نه د ډالرو د زوال خواته د تېښتې لار ده، دا کتاب ښایي چې مونږ دې

حالت ته څنګه او ولې ورسېدوو؟ پردې سربېره به دا کتاب ستاسو د راتلونکو مالي امکاناتو لپاره هم ګټور ثابت شي.

د ډالرو زوال ولې پېل شو؟

له سرو زرو نه د ډالرو د معيار جلا کولو اصلي لامل دا و، چې له امريکا سره سوداګري کونکي هېوادونه خپله کرنسي په ډالرو پورې وتړي په بله وېنا، ولسمشر نېکسن پدې پوهېده، چې د سوداګرۍ او خدماتو پرځای په سرو زرو انحصار به د امريکايي اقتصاد د پراخۍ مخه ونيسي. يو لامل يې دا هم و، چې له بحر پورې هېوادونو د کرنسۍ د ارزښت کمېدو مخه ونيول شي: که څه هم دا يوه هڅه وه پدې توګه د امريکا ډالر او د جاپانۍ او اروپايي کرنسۍ له تبادلې څخه د امريکا سوداګري په عروج کې وه. دا حالت د ډالرو د اوسني مخ پر خور حالت برعکس و.

که ولسمشر نېکسن د ۳۵ ډالره يو اونس سرو زرو ارزښت پابند وی او ډالر يې ازاد بازار ته د خپلې بيې ټاکلو لپاره پرايښی وای؛ نو په نړيواله کچه به د مالي ستونزو د حل لپاره ډېر ښه اقدام و؛ خو د سرزرو په ارزښت پابندي د دوو لاملونو له مخې ور وګنل شوه.

لومړی امريکا نورو هېوادونو ته اجازه ورکړه، چې امريکا ته د صادراتو بيه لوړه کړي او دا ښه نه وه، په ځانګړي ډول هغو هېوادونو ته چې په ډالرو سب سېډي (تخفيف) ورکول کېده. د بېلګې په ډول، د سرو زرو له مصنوعي ارزښت څخه که بنديز لرې شوی وی؛ نو جرمني به د خپلو وارداتو بيه ۵.۲ سلنه لوړه کړې وی او امريکايي توکي به جرمني کې پخپل نرخ خرڅېدل.

دویم لامل د طبیعي توکو په نړیوال بازار به دې کار ډېره بده اغېزه کړې وی، ترڅو چې د نفتو بیه په دوه چنده شوې وی دا حالت په هېڅ صورت بیه نه و. د سرو زرو د معیار له پرېښودو څو کاله وروسته زمونږ د انفلاسیون دوه دوه چنده لوړېده.

په هر حال! د ولسمشرنېکسن دا پرېکړه د ډالرو ارزښت کمېدل وګڼل شوه، د کرنسیو بازارونو له مخکې دا درک کړې وه. چې ډالرو ته مصنوعي ارزښت ورکول شوی دی

د ۱۹۷۱ز کال په دسمبر کې، د لسو مخکښو صنعتي هېوادونو مشرانو په واشنګټن کې غونډه وکړه، پدې غونډه کې په رسمي ډول، د یوه اونس سرو زرو په ارزښت د کرنسی د بدلون پرېکړه وشوه؛ پداسې حال کې چې د سرو زرو ارزښت لا دمخه له ۳۵ ډالرو څخه ۳۸ ډالرو ته لوړ شوی و.

په دې ناسته کې د ډالرو ارزښت ۸۹،۷ سلنه راټیټ شو او په مقابل کې یې د جرمني مارک ارزښت ۱۳ سلنه او د جاپاني ین بیه ۹،۱۲ سلنه لوړه شوه؛ خو د سرو زرو د معیار پرېښودلو اغېزې د ۱۹۷۰ز کال له انفلاسیون سره د جوړ جاري څخه هم ډېرې ژورې وې. خکه زمونږ د ډالرو عرضه او حرکت د سرو او سپینو زرو ژېرمو په کمښت او مقام ولاړ و؛ خو ولسمشر نېکسن سره دا اندېښنه وه، چې د نورو خلکو د ټیټې درجې له کرنسی سره د سیالی لپاره د سرو زرو معیار مونږ ته ستونزې جوړولای شي. هسې هم تر دې وخته مشهوره شوې وه چې امریکا د خپلو سره زرو څخه زیاته کرنسي چاپ کوي او دا خبره هغه وخت تر یوه حده ریښتیا هم وه.

که موږ دا حقیقت درک کړو، چې کرنسي د توکو او خدماتو پرځای د «IOU» (د پور لیکلې وعده I OWE YOU) یو ساده شکل دی؛ نو په ټولو چارو پوهېدای شو. ۱۹۷۱ز کال کې د ټولو بهرنیو کرنسیو ارزښت د سرو زرو او ډالرو په مقابل کې راټیټ شوی و. ولسمشر نیکسن چې د سرو زرو معیار پرېښود؛ نو د بیو د کنټرول د یوه ناسم اقدام په مرسته یې د اقتصادي ثبات هڅه وکړه. هغه غوښتل، چې د ۱۹۷۱ز کال د مخ په زیاتېدو انفلاسیون Inflation مخه ونیسي

ولسمشر نیکسن د فیډرل ریزرو د مشر آرتهر برنز په خبرو عمل وکړ. د معاشونو او د توکو د بیو د کنټرول لړۍ یې پیل کړه نیکسن د آرتهر بدې فلسفې درلود. چې د قوي او ثابتې کرنسي زړه نظریه ناسمه ده او د اقتصادي بیارغونې او قوت اصلي کونجي دا ده، چې حکومت په معاشاتو او د توکو په بیو واکمن وي. دې نظریې د اقتصادي حالت درک سخت کړ، ویل کېده، چې د نرخونو او معاشونو ثبات : انفلاسیون د مخنیوي موثره لار ده نیکسن هغه جمهوري ارزښتونه هم شاته وغورځل، چې د آزاد بازار په ګټه ګڼل کېدل. زما په فکر د نیکسن دا پرېکړه د ۱۹۷۲ز کال په ټاکنو کې د دندو رامنځته کولو د پلان یوه برخه وه

آرتهر برنز په نیکسن دا ټینګار هم کړی و، چې له سرو زرو څخه د ډالرو د جلا کولو اقدام دې د روسي رسنیو او د مسکو د سرې جګړې د ګرندي کولو برابر نه ګڼي، ځکه دا به د امریکا لپاره بد فال وي او د شوروي اتحاد ویانده ورځپاڼه (پراودا) به یې د پانګوال نظام زوال تعبیر کړي د ولسمشر نیکسن له پرېکړې ۳۵ کاله تېر شول او هڅا اوږده دوره یې د ناسمې ثابتولو لپاره بس ده که څه هم

په هغه وخت کې پانګوال نظام یا کپیټل ابزم ناڅاپي سقوط ونه کړ، خو په وخت تېرېدو له خوړ سره مخ شو. اوس پوښتنه دا ده چې، که امریکا او ډالر له زوال سره مخ شي؛ نو د نړیوال اقتصادي رهبر په توګه به ددې ځای ناستی څوک وي؟ ځواب یې روښانه دی، هغه چین، چې تر ۱۹۷۱ز کال پورې د کمونیزم تر تولو بده بېلګه ګڼل کېده.

دا نظریه ناسمه وه، چې د معاشونو او نرخونو کنټرول به د انفلاسیون مخه ونیسي، د اضافي کرنسۍ د چاپ مخنیوی او د ډالرو د ارزښت ساتلو پرځای؛ له سرو زرو څخه د هغه د جلا کولو پرېکړې حالت لاپسې خراب کړ. د معاشونو او بیو کنټرول د امریکا اقتصادي حالت بېرته ونه رغاوه؛ خو نیکسن یې په ټاکنو کې بریالی کړ. پدې دور کې نه دندې پیدا شوې او نه هم د انفلاسیون مخه ونیول شوه؛ بلکې کچه یې لا ډېره شوه. امریکایي نظام په معاشونو او د بیو د کنټرول سیستم له ناکامۍ سره بیا هم پلی کاوه؛ خو د ۱۹۷۴ز کال د اپرېل په میاشت کې، نیکسن له خپلې استعفا څخه ۴ میاشتې مخکې دا قانون لغو کړ، چې له بده مرغه پدې وخت کې د انفلاسیون، بیو او بېکارۍ کچه ډېره لوړه شوې وه. اوس باید پدې پوه شو چې کرنسۍ ته د سرو زرو معیار ورکولو مانا څه ده او په نړیوالې مالي نظام کې ددې ونډه ولې مهمه ده؟

دا پدې مانا وه، چې هر هیواد د خپلو زېرمه کړیو سرو زرو په کچه کرنسي چاپ کولای شي؛ خو د لومړۍ نړیوالې جګړې د مصارفو پوره کولو لپاره هېوادونو له خپلو سرو زرو نه ډېره کرنسي چاپ کړه، چې له امله یې نه یوازې د کرنسیو ارزښت راکم شو. بلکې د

۱۹۳۰ز کال تاریخي مالي بحران هم ددې کار زېږنده و. مونږ باید له تاریخ نه سبق واخلو او دا هېره نکړو، چې د سرو زرو دمعیار پرېښودلو له امله نړیوال اقتصاد زیانمنېدای شي.

له دویمې نړیوالې جګړې تر ۱۹۷۱ز کال پورې، زیاتره صنعتي هېوادونه له (برېټن ووډز سیستم) (Breton woods System) سره تړلي وو. دا سیستم د ۱۹۴۴ز کال د جولایې په ۲۲ نېټه د نیو همپشایر په سیمه کې د ملګرو ملتونو په مشرۍ په نړیوال مالي کنفرانس کې رامنځته شو او د هغه سیمې له امله پدې نوم ونومول شو. پدې ناستې کې یو شمېر مهم تړونونه وشول، د نړیوالې کرنسۍ او سوداګرۍ د نظم لپاره انټرنیشنل مانټري فنډ اداره (IMF) هم په همدې کنفرانس کې رامنځته شوه، دا اداره د امریکایي (فیډرل ریزرو ) اداري نړیوال شکل و، چې د کرنسي پالیسیو د عملي کولو واک یې هم درلود. په دویمې نړیوالې جګړې کې د اغېزمنو شویو هېوادونو د بیارغونې او پرمختګ لپاره د پیسو برابرولو، نړیوال بانک هم په همدې کنفرانس کې رامنځته شو.

په برېټن ووډز کې شوي تړونونه ډېر مهم وو، ځکه په مالي مسایلو کې په نړیواله کچه دا لومړي تړونونه وو، کومو هېوادونو چې په نړیواله کچه د بیو د ثبات په نظر کې نیولو سره د سرو زرو معیار برې‌نبود. پرېکړه یې پرخای او ګټوره ثابته شوه پدې کنفرانس کې د هیوادونو استازي پدې هم پوهېدل، چې راتلونکې اقتصادي پالیسي به د ټولې نړۍ اقتصادي ثبات تامین کړي پدې هم پوهېدل چې د طبیعي پېښو او آفتونو په صورت کې به دوی وخت پر وخت له انفلاسیون، بیکارۍ او د کرنسۍ له بې ثباتۍ سره مخ کېږي؛ خو د

سرو زرو د معیار د پرېښودلو له امله چې دوی کوم زیان لیدلی و، بریټن وودز سیسټم هغه هم ډک کړ.

د اقتصادي او سیاسي شخړو له ۱۹۷۰مه لسیزه په دېرې ستونزمنې مرحلې کې پیل شوه؛ خو لدې وروسته ثابته شوه، چې د سرو زرو معیار پرېښودل وژونکې پرېکړه وه. که څه هم دا پرېکړه سمدستي د پانګوال نظام د سقوط لامل نه شوه؛ خو اوس ۴۰ کاله وروسته یې مونږ د ګرنګ پر غاړه ودرولي یو. دا به غوره وي چې ووایو، په نړیوال اقتصاد د امریکا اوږده واکمني له منځه تلونکې ده.

ډالر ورو ورو د پای خواته روان دي.

آمریکایي مصرفونکي (Consumers) پدې پوهیږي، چې پر خپل تاکلي (Fixed) عاید ګوزاره نشي کولای. د خپل تقاعد لپاره د ساتلو پیسو ارزښت کمېدل یې خوروي. څکه دوی له اوسه د خوراکي توکو د لوړو بیو سره مخ شوي دي، دا حالت اوس دومره سخت شوی چې خلاصی ترې نشته، څکه د ډالرو ارزښت پرلپسې کمیږي، اغېزه یې دومره تېزه ده، چې د امریکا تر عایداتي سرچینو هم رسېدلې او له امله یې مونږ د نورو هېوادونو له صنعت سره سیالي نشو کولای، که هروخت یې یو قوي تکان ولید؛ نو شته وجود به یې هم له منځه لاړ شي.

پدې اړه لاندې درېیو امکاناتو ته پام وکړئ:

لومړی امکان:

داسې به وګڼو، چې زیاتره هیوادونه نور خپل د سرو زرو معادل زېرمې په ډالرو نه ساتي او دا چې مونږ د ډالرو د ارزښت د ثبات لپاره د باندنی سوداګرۍ انحصار هم پخپلې کړنسۍ کوو، نو که لپه

هم د بې ثباتۍ (Imbalance) ښکار شي. زمونږ ډالر به د پېر له ټوټې ټوټه بې برخې شي. د ۲۰۰۵ز کال په فيبرورۍ مياشت کې شمالي کوريا اعلان کړی و، چې نور پخپلو زرمبادله زيرمو کې ډالر او بانډونه نه ساتي. له بده مرغه په همدې ورځ د کاناډا لوني (loonie) کرنسي د امريکايي ډالرو سره برابره شوه.

سعودي عربستان د (فيډرل ريزرو) سره د کرنسيو د بيو له مطابقت او همغږۍ انکار وکړ، په سود کې بدلون نه راوړل هم ددي خبرو خواته اشاره وه. چې سعودي عربستان کيدای شي له امريکايي ډالرو سره خدای په اماني وکړي ايران، عراق او کويټ خو لا دمخه ډالر پرېښودي او داخل کېدای شي د سعودي عربستان وار وي.

ايران د خپلو نفتو ۸۵ سلنه بې له ډالرو په نورو کرنسيو پلوري. ۲۰۰۷ز کال کې ولسمشر محمود احمد نژاد، اوپيک سازمان کې په نورو غړيو هم ټينګار وکړ، ددې په لار روان شي. دا وړانديز يې هم وکړ، چې د نفتو صادرونکي هيوادونه دې د خپلې ګډې کرنسۍ په اړه فکر وکړي، ورسره يې د ونزويلا د ولمشر (هيو ګيو شاويز) دا جمله ډېره په شوق تکرار کړه، چې (د ډالرو د سلطنت زوال راتلونکی دی). د هيوګيو شاويز کمپنۍ (استيټ آيل) خپل ټوله پانګه له ډالرو ټوټه په يورو بدله کړې ده، دا يې پيل دی. وړاندې به ګورو چې څه کيږي

دا اوازې هم رواني دي چې د کوريا بانک د سلو مليونو په ارزښت امريکايي بانډونه پلورلي دي او د يو ميليارډ نورو د پلورلو (Dumping) تابيا کوي که امريکا پرې اقتصادي بنديزونه ولګوي؛ نو چين به ورسره مرسته وکړي. چين به نږدې وخت کې د

۹۰۰ میلیاردو ډالرو د باندونو پلورو اخطار ورکړی و. ددې ترڅنګ د روسیې د ولسمشر دا خوبلا هم تازه دی، چې د روسي طبیعي توکو سوداګري به د ډالرو پرځای په روسي روبلو کوي، دی هم غواړي چې د کوریا په څېر له ډالرو سره اړیکه غوڅه کړي. سویډن هم یو ځل اخطار ورکړی و، چې له امریکا سره په سوداګري کونکو کمپنیو بندیزونه لګوي که نوز هیوادونه هم له دوی سره شي؛ نو د ډالرو د پېر قوت (purchasing power) به راکم شي. لدې وروسته به تاسو د پېر لپاره ډېرو ډالرو ته اړتیا ولرئ. بیا څه به کوئ؟

**دویم امکان**

دویم امکان دا دی چې، که د نفتو بیې ډېرې لوړې شي؛ نو پدې صورت کې به مونږ او زمونږ د انفلاسیون کچه د منځني ختیځ د نفتو په رحم او کرم ولاړه وي ۲۰۰۵ز کال کې مونږ دا نه ګڼله چې د نفتو بیې به دومره لوړیږي او یو بېرل به ۱۵۰ ډالرو ته رسیږي زمونږ دا بې وسي کومه فرضیه نده؛ بلکې ددې ترشا ډېر لاملونه پراته دي، د بېلګې په ډول که ترهګر د نیوکلر ریډي ایشن (Nuclear Radiation) په مرسته به ډېره کچه زرمبادله زېرمې ترلاسه کړي؛ نو د نفتو راویستل به ودرېږي او بیې به یې ډېرې لوړې شي، پر نفتو د انحصار له دې بې وسی څخه نبه خبر یو؛ خو ددې د پاملو په اړه فکر نه خونبوو، د نفتو د بیو لوړېدل یوازې په پمپونو کې بیې نه لوړوي؛ بلکې د ټولو ورځنیو توکو بیې هم ورسره لوړیږي

د ۲۰۰۷ کال تر سپتمبر پورې امریکا کې د نفتو د یوه ګېلن بیه ۷۸،۲ ډالرو ته ختلې وه، چې د ۲۰۰۲ کال دوه برابره کیږي، دې نه د مصرفونکو د پېر قوت مالومیږي، د ورځنیو اړتیاوو توکو بیه هم

دوه چنده شوې ده. په ۲۰۰۱ز کال کې بیې ۲،۵ سلنه لوړې شوې دي او په ۲۰۰۲ کال کې دا فیصدي ۱،۲ وه.

درېیم امکان:

درېیم امکان دا دی، چې زموږ سوداګریز او بودیجوي کسر دوه چنده شي، یانې موږ له خپلو وسایلو نه تېری کوو او مصارف، مو تر ملي عاید دوه چنده زیات شوي دي زموږ د پورونو کچه لړزونکې ده او د سود کچه ورځ تر بلې لوړېږي. زموږ توکي هغو هېوادونو ته لږ ځي چې موږ ترې توکي پېرو او واردات ترې کوو. دې کار موږ بدخرڅه (Spendaholic) ولس وګرځولو. دا پدې مانا ده چې موږ تولیدات نه کوو او پېرودلو پسې راوتي یو، موږ هغه پیسې نه مصرفوو چې لرو یې؛ بلکې موږ د کریډټ کارتونو په پورونو مست یو. ۲۰۰۲ ز کال کې زموږ د بودیجې کسر د ۲۰۰۱ په پرتله دوه چنده و، د هر کور مشر پدې ښه پوهېږي چې دا حالت به تر ډېره نه وي؛ خو افسوس چې موږ اوس له خطرناک حالت سره مخ یو.

**د خوشبینو امریکایانو د ستونزو حل:**

څومره چې زموږ اقتصادي حالت خرابېږي، سیاسي رهبران مو له دروغو او فرېبونو کار اخلي، دوی د اقتصادي اشارو په مرسته غواړي ثابته کړي، چې امریکایي اقتصاد په قوي بنسټونو ولاړ دی، افسوس چې پدې دعوو کې هېڅ رېښتینولي نشته؛ خو سیاسیون تل غواړي چې اقتصاد په پراسراره ( Esoteric Indicators ) پېمانو اندازه کړي، لکه موږ ته ویل کېږي چې د مصرفوونکو باور ډېر لوړ شوی دی

ډېر ښه! خو آيا دا رښتيا ده؟ د امريکا خوشبيني، که څه هم، په تېرو دوو کلونو کې ډېر څه ترلاسه کړي دي؛ خو د ډالرو د مخ پر ځوړ ارزښت لپاره يوازې خوشبيني کفايت نه کوي، زما موخه دا نده، چې امريکا له منځته تللې، زه د خپلې نړيوالې اقتصادي واکمنۍ په اړه خبره کوم، چې اوس له زوال سره مخ ده، ددې مالومات تاسو د تېرو څو کلونو له بد اقتصادي حالته کولای شئ.

زياتره امريکايان کاروبار او دندې د اقتصاد پيمانه يا بارو ميټر (Barometer) ګڼي؛ خو رښتيا داسې نده. پدې کې هېڅ شک نشته چې دندې هره مياشت زياتيږي؛ خو دا خبره ټوله رښتيا نده، ځکه رښتيا خبره داده، چې په صنعتي سکتور Manufacturing sector)) کې د لوړو معاشونو دندې له منځه ځي او پرځای يې په عمده او پرچون بازارونو او روغتيايي ادارو کې د ټيټې درجې دندې رامنځته کيږي.

څومره چې صنعتي دندې چين او هند ته ځي مونږ بايد په هماغه کچه ملاګانې وتړو... خو زه پوهيږم چې مونږ ددې پرځای، د خپلو اړتياوو پوره کولو لپاره په پور پسې پور اخلو. يو لامل به دا وي، چې لږ خلک په سوداګريز کسر ،ملي پور، جي ډي پي، انفلاسيون او د اقتصادي اشارو په څېر پېچلتياوې درک کولای شي. رښتيا خو دا ده، چې زمونږ د کانګرس ډېر غړي هم د عامو خلکو په څېر په اقتصادي چارو نه پوهيږي او د هغوی له ناسمو پرېکړو څخه عام ولس اغېزمن کيږي.

تاسو به هم هره مياشت د خپل مياشتني عايد يوه برخه د تقاعد لپاره سپموئ، چې په بوډاتوب د رسره مرسته وکړي؛ خو دا فکر مو کړی،

چې هغه وخت به يې مالي ارزښت (Worth Value) څومره وي؟ اوسني حالت ته په کتو يې زه صفر ګڼم؛ تو څکه دا وخت د اسهامو (Shares) او نورو۔ اخستلو ندی، څکه د امریکا مالي بحران ندی ختم شوی، د مالي ادارو مخ ته د خنډونو لړۍ اوس هم پرته ده.
د نیشنل ایسوسی ایشن اف ریلټرز (Rèaltors) په وړاندوینو باور نشته، څکه ۲۰۰۷ کال کې دوی پر خپلو وړاندوینو لس څله بیا کتنه کړې ده، که په ۱۲ میاشتو کې په کومې وړاندوینې ۱۰ څله بیا کتنه وشي؛ نو زما په فکر دا باید وړاندوینه ونه ګڼل شي. څومره چې دا بحران په امریکا کې خپریږي هومره به يې شدت هم زیاتیږي. د Investorseconomy.com له مخې د کورونو په بیو کې ۱۳ سلنه کمی راغلی دی، د کلفورنیا او فلوریډا ایالاتونو په څینو سیمو کې خو دا سلنه ۳۵ ته رسېدلې ده.
اډیسن وګن (Addison wiggin)
(بالتي مور –امریکا)

## د اقتصادي بيارغونې په لور

« په ټول انساني تاريخ کې به داسې اقتصاد پوه نه وي تېر شوی، چې د راتلونکي وخت د خوړو د پيدا کولو اندېښنه يې کړې وي»
(پيټر اف ډرکر)

حيرانونکې ده، چې ټولې نړۍ کې د زرمبادله په توګه د زېرمه شويو کرنسيو حجم پرلپسې زياتيږي او له زوال سره مخ دي. دا له هغه وخته پيل شول، چې فيډېرزل ريزرو (Federal Reserve) اداره رامنځته شوه ترڅو د ډالرو د ارزښت کمېدو د مخنيوي په موخه مناسب پلانونه جوړ کړي ؛ خو برعکس د ادارې له رامنځته کېدو سره سم د ډالرو زوال پيل شوی دی او اوس ترې خطر احساسيږي په اقتصادي رسنيو کې، دا جمله له څو کلونو راهيسې تکراريږي چې:
( د نورو کرنسيو پر وړاندې ډالر تر خطرناکه حده ټيټ شوی دی).
عجيبه ده، هغه بهرني خلک چې له موږ سره اوسيږي، معاشونه په ډالرو اخلي او مصارف په يورو کوي، څکه په ډالرو بايد هغوی دوه چنده پيسې ورکړي، تاسو هم بايد په لويديځه اروپا کې د سفر مصارف، په ډالرو دوه چنده وکړئ.
۲۰۰۷ ز کال کې د مننې له ورځ (Thanksgiving day)، يوه ورځ مخکې د يورو په مقابل کې د ډالرو ارزښت له ۴۸۵۲.۱ څخه هم راښکته شوی و. چې دا له ۱۹۹۹ز کال څخه راپدېخوا تر ټولو بده لوېدنه وه د ډالرو دا غورځېدل زمونږ د هغو ملګرو لپاره هم ډېر سخت وو. چې د کار لپاره لندن ته تلل زما يوه ملګرې (بل بونر) څخه

وخت مخکې په لندن کې د يوې شپې تېرولو لپاره ۴۲۵ ډالر ورکړل، چې پکې يوازې د ويسټ اينډ تياتر څو ټيکټونه، د ټيکسي سفر او په چينايي هوټل کې دوډۍ خوراک شامل وو.
زياتره امريکايان تراوسه له امريکا څخه د باندې ندي تللي، خکه نه پوهيږي چې د نورو کرنسيو په مقابل کې د ډالرو څومره ټيټ دی، دوی بايد پوه شي چې امريکا کې د نفتو او خوراکي توکو په شمول د نورو شيانو د بيو لوړېدو اصلي لامل همدا د ډالرو ټيټ ارزښت دی د فيډرال ريزرو کارپوهان چې د انفلاسيون او ګرانۍ په اړه خبرې کوي؛ نو مرکزي انفلاسيون (Core Inflation) له مجموعي انفلاسيون (Overall inflation) څخه جلا کوي او يوازې د مرکزي انفلاسيون حالت بيانوي، څکه پدې کې خوراکي توکي نه وي شامل، همدا هغه اصل توکي دي چې بيې يې ورځ تر بلې لوړيږي او مصرفوونکي يې خفه کړي دي
د (U.S bureau of Labor Statistics) د شمېر له مخې د ۲۰۰۰ز کال له جنوري څخه تر د ۲۰۰۲ ز کال د جولايي پورې، د نفتو په منځنۍ بيې کې ۵،۱۳۵ سلنه زياتوالی راغلی دی، چې په ۲۰۰۷ز کال کې مونږ دا بيه لدې هم لوړه ليدلې ده، يانې ۳ ډالر په يوه ګېلن کې د خوراکي توکو ګرانښت لدې هم زيات دی، د خوراکي توکو د بازارموندنې د انستيټوټ د شمېر له مخې په امريکا کې يوه منځنۍ کورنۍ هره اونۍ په خوراکو توکو ۹۳ ډالره مصرفوي، که کورنۍ ماشومان ولري مصرف يې لدې هم ډېريږي د ۲۰۰۷ز کال په لومړيو شپږو مياشتو کې د خوراکي توکو بيه ۵.۷ سلنه لوړه شوې وه، چې د ۲۰۰۲ کال د ۱.۲ سلنې په نسبت درې چنده زياته ده، د ( U.S

(Department of Labor) په حواله دا له ۱۹۸۰ز کال راپېد بخوا تر ټولو ډېره ګراني ده.
د تېلو په يو ګيلن کې د ۳ ډالرو زياتېدو ترڅنګ، د کورنو د بيو لوېدل بله ستونزه ده چې ولس ورسره مخ دی. مصروفونکي بدې اره څه غيرګون ښايي؟ ددې لپاره د (FMI) اداري دا راپور وګورئ چې په ۲۰۰۵ز کال کې له دوکانونو ډېر غلا کېدونکې توکی غوښه وه. دا د بيوزلو او مفلسو مصرفوونکو د حال ښه ښکارونديي کوي
پردې سربېره په ټول هېواد کې، د بخلنځي د وسايلو عرضه کمېږي. دا مونږ په کوم وخت کې ژوند کوو؟ زياتره اقتصاد پوهان يې دا حالت نشي درک کولای او يا يې اعتراف نه کوي؛ خو دا رښتيا ده چې مونږ له ستونزې سره مخ يو! کېدای شي څه وخت وروسته اقتصاد پوهان هم د عام ولس لدې حالت سره مخ شي او په خبره به پوه شي
۲۰۰۷ز کال کې ( National association for business economics ) يو راپور خپور کړی و. ددوی پوهانو چې کومه سروې کړې نيم يې بدې نظر وو، چې د امريکا اقتصاد به ډېر زر د مالي بحران ښکار شي؛ خو په دوی کې هم يو شمېر د فيډرل زيرزو د ادارې په شان خوشبينه دي، دا ښاغلي په جي ډي پي کې ۲.۲ سلنه تاوان ډېر معمولي ګڼي. څکه ددوی په نظر دا د ۲۰۰۷ز کال د ۴.۲ سلنه تاوان نه لږ څه زيات دی ييا په نومبر مياشت کې فېډرل ريزرو يوه عجيبه وړاندوينه وکړه، چې د ۲۰۰۸ز کال د جي ډي پي خساره يا تاوان به يې له ۲.۱ څخه تر ۲.۵ پورې ښودلی و؛ خو څه وخت مخکې دا تاوان د وړاندوينې خلاف له ۲.۵ څخه تر ۳ سلنه پورې و.

حکومت د اقتصاد د قلارې ودې (Subpar Economic Growth) او لږ تیتېدو (Below Trend) اصطلاحات کاروي، ددوې له غوښتنو مالومیږي، چې د پردې تر شا څه روان دي؟ حکومت غواړي ددې ډول اصطلاحاتو په کارولو ولس وغولوي. مونږ تل امریکا د نړیوال اقتصادي لاربنوود هیواد ګڼلی، که له دې خبرې مو موخه دا وه، چې امریکا له نړۍ څخه توکي پېرودل، کارول یې او بیا یې په نورو پلورل؛ نو تاسو پدې پوه شئ چې امریکا اوس دا وړتیا له لاسه ورکړې ده.

په نږدې راتلونکي کې به وګورو، چې پر نړیوال اقتصاد واکمني، له امریکا څخه د چین خواته وخوځیږي او چین به د نړۍ اقتصادي لاربنود وي چین له نړۍ څخه خام مواد اخلي، تولیدات ترې کوي او د خامو موادو د پېر قوت (Rate of Buying) یې ورځ تر بلې زیاتیږي. په ۲۰۰۶ز کال کې یې له نړۍ د پېر سلنه ۲۰ وه، د جاپان ۱۳ وه او امریکا د ۱۱٪ په لرلو سره په دریم ځای کې وه. د چین سوداګریزه ګټه (Trade surplus) ۲۳ میلیارده ډالرو ته رسېدلې وه، د ۲۰۰۷ز کال د مې په میاشت کې، د چین صادارت ۷۳٪ ته ختلي وو.

دا ارقام د امریکا د بهرنیو چارو وزیر هنري پالسن ته ډېر حېرانونکي وو، هغه پدې وروستیو کې له چین سره په سوداګریزو چارو خبرې کړې دي. پالسن د امریکا د اقتصاد په اړه هر څه ویلای شي؛ خو چینایان په خبرو باور نه کوي، هغوی یوازې کار ته ګوري او د خبرو پر ځای عمل کوي. پردې سربېره په مالي میدان کې آسیایي بازارونه ښه او تاریخي ننداره وړاندې کوي، د ممبي د اسهامو بازار (BSE senex) په لومړي ځل ۱۵۰۰۰ پواینټه ختلی دی، د ټوکیو د

اسهامو بازار تیر ۷ کلن ریکارډ مات کړ. د هانګ کانګ د اسهامو بازار د پرلپسې ۵ ورځو ریکارډ جوړ کړ. په همدې ډول د جنوبي کوریا مارکیټ هم د ۴ ورځو ریکارډ جوړ کړ. د سېډني مارکیټ هم سږ کال ۳۴ ریکارډونه جوړ کړي او زموږ اقتصادي ماشین(Economic Engine) د ډېرو وارداتو او پورونو له امله ورځ تر بلې کمزوری کیږي

## د G.D.P په اړه خوش باوري

(ناخالص داخلي تولید یا G.D.P د بازار په بیه په یوه معین وخت(کال) کې د تولو توکو او خدماتو له ارزښت څخه عبارت دی. دا په هیواد کې د تولیداتو او ملي عاید د اندازه کولو یوه چاره ده ژ)

زموږ اقتصاپوهان له نورو هیوادونو سره زموږ سوداګرۍ، د پېرودونکو پېر او روزګار اقتصادي بیارغونه ګڼي؛ خو دا تشې خبرې او له حقیقته ډېرې لرې دي که موږ پدې پوه شو. چې خپلې پیسې چېرته او څه ډول مصرفوو؛ نو سترګې به مو وغړېږي. د اقتصادي کچې د تعینولو بنه لاره دا ده. چې موږ څومره تولید لرو، څومره مصرفوو، څومره پانګونه کوو، څه اخلو او څه پلورو؟ د G.D.P د مالومولو لپاره په عمومي ډول همدې موضوعاتو ته لومړیتوب ورکول کیږي

ستونزه دا ده چې یوازې د GDP په لیدو اقتصادي حالت سم نشو درک کولای، ځکه دا د بېلابېلو شیانو ټولګه ده. چې ځینې یکې متضاد هم وي. که موږ غواړو اقتصادي حالت درک کړو نو لومړی

باید د GDP په بنسټیز فورمول ځان پوه کړو. د GDP مالومولو عمومي فورمول دا دی:

Consumption + Business Investment + Govt Spending + Import-export = G.D.P

مصرف+ سوداګریزه پانګونه+ دولتي مصارف+ واردت-صادرات=

G.D.P (د هیواد دننه په یوه ټاکلي وخت کې تولو تولیدت شویو توکو او خدماتو ارزښت)

په جي ډي پي کې زیاتوالی د اقتصادي ودې په مانا ندی، ځکه اقتصادي وده د هغو توکو په کچې پورې اړه لري، چې GDP یې تولګه ده. په ۲۰۰۳ز کال کې زمونږ پوهانو په جي ډي پي کې لاسوهنه وکړه او دا یې اقتصادي بیارغونه وبلله؛ خو دا هغسې بیارغونه نه و چې مونږ لدې مخکې لیدلې وه. بیا د ۲۰۰۷ او ۲۰۰۸ز کلونو د مالي بحران په اړه هم مونږ همداسې وغولول شو. مونږ د بوش د تخفیفي کڅوړې (Stimulus package) په اړه ډېر څه واورېدل. خو دا تولې هغه تکرار خبرې دي، چې مونږ یې له ۲۰۰۱ز نه اورو.

د ۲۰۰۷کال په درېیمي ربعې کې د (فیډرل ریزرو) مشر برنانک زیری ورکړ، چې زمونږ GDP د ۷.۳٪ په زیاتوالي سره ډېره قوي شوې ده، په همدې ډول د (بیورو آف لېبر) ادارې هم د لویو لویو خبرو لرونکې یوه خبر پاڼه خپره کړه، چې عنوان یې دا و:

GDP Grows ۳,۹٪ in third quarter

په درېمي ربعې کې جي ډي پي ۹.۳ سلنه ختلې

خو رښتیا به تاسو تل د عنوان لاندې په وړو کرښو کې وینئ، د همدې خبر په جزیاتو کې لیکل شوي، د (بیورو آف لیبر) ارقامو

بنودلې چې له ۲۰۰۲ ز کال راپدېخوا په GDP کې هر کال کمی راغې (د حکومت د سیسه څرګنده شوه)، پردې سربېره حکومت په جي ډي پي کې زیاتوالی د (شخصي مصارفو Personal Consumption) پر بنسټ ښودلی دی، په همدې وخت کې د ودانیو په مالي ارزښت کې کمی او په وارداتو کې زیاتوالی راغلی و؛ خو دا لاملونه حکومت په جي ډي پي کې شامل نه کړل دا هغه حکومتي دسیسې دي، چې په مرسته یې زمونږ د اقتصاد پوکانۍ ته مصنوعي هوا ورکول کېږي

سږ کال زمونږ د انفلاسیون کچه له ۵،۲ څخه ۲،۳ سلنې ته ختلې، لدې هم د حکومتي دعوو اصلیت څرګندېږي. که مونږ یوازې په حکومتي ارقامو باور وکړو؛ نو په حقیقت نه پوهېږو، زه د حکومت په هغو دعوو بیخي باور نه کوم، چې وايي زمونږ اقتصاد ښه شوی دی. زمونږ پوهان په اقتصاد کې راتلونکي موقتي ګرندیتوب ډېر یادوي، د بېلګې په ډول په ۲۰۰۳ ز کال کې مونږ ته وویل شول، چې جي ډي پي ۳،۸ سلنه زیاته شوې او دا د قوي اقتصاد نښه ده؛ خو دې ته هېڅکله قوي اقتصاد نه ویل کېږي، ځکه د مصرفوونکو د ډېر پېر له امله پکې لنډمهالي ګرندیتوب راغلی و، چې د پوروړو خلاصولو پروسې ته یې زیان ورساوه.

زمونږ پوهان په اقتصادي بازار کې موقت ګرندیتوب (Momentum and Surges) ته ډېر خوشالیږي: خو اصلي حقایق له پام غورځوي که مونږ دا ومنو، چې په جي ډي پي کې زیاتوالی د همدې موقت ګرندیتوب له امله و، نو ستونزه حل کیږي

له ۲۰۰۳ز کال څخه چې زمونږ اقتصاد مخ په خرابېدو دی، تر اوسه پکې کومه اصلاح نده راغلې، مونږ د داسې کړکیچن حالت ښکار یو، چې ډېرې ستونزې راته په یو ځای راولاړې شوي دي، د بېلګې په ډول، د ګټې ټیټه کچه، سوداګریز کسر، په مصرفوونکو پوروونه او د کریډټ کارت بحران. دې ټولو ستونزو اوس نه یوازې د ودانیو د مالي بحران ستونزه راولاړه کړې، بلکې د ډالرو ارزښت یې هم ډېر راټیټ کړی دی. زمونږ واردات د صادراتو په پرتله ډېر دي. لدې څخه رامنځته کېدونکی کسر دومره خطرناک دی چې د ډالرو (د پېر قوت) به له تباهی سره مخ کړي.

زمونږ غوښتل سوداګریز او بودیجوي کسر، په اصل کې د ډالرو د ارزښت ټیټېدو اصلي لامل دی د اقتصاد د ودې د کچه کولو اصلي پیمانه، د جي ډي پي پرځای د همدې کسر کچه ده د ۲۰۰۷ز کال په اپرېل میاشت کې. د امریکا سوداګریز کسر د چین د خالصې ګټې دوه چنده و، همدا زمونږ د اقتصادي حالت د بیان لپاره کفایت کوي کانګریس لدې امله شور جوړ کړی و، چې زمونږ پور له ۸۵۰ بلیونو ډالرو څخه ۹ ټریلینونو ډالرو ته رسېدلی دی اوس زمونږ د جي ډي پي کچه ۱۴ ټرېلیونه ډالر او پور مو ۱۲ ټرېلیونه ډالر دي؛ خو دا خبره په امریکا کې له ما او (واکر) پرته بل چاته نده مالومه. خکه واکر په هغه وخت کې د (پیټر جي پیټر سن بنسټ) مشر و او په ۱۹۹۷ز کال کې د دولتي پوروونو د بیا کتنې (Auditing) دنده ورسپارل شوې وه، واکر دا وېښونکی واقعت لیکلی دی:

«مونږ د ۱۹۹۷ – ۲۰۰۷ مالي کلونو پوروونه وڅېړل؛ نو دا واقعت راڅرګند شو، چې ۷۳ سلنه زیاتوالی پکې راغلی دی. په ۱۹۹۷ز کال کې پوروونه

۲۰۰۷ کال د ۲۷۹۳ میلیاردو ته اوس د ۲۰۰۳ ز کې
۳۱۱۰ میلیارده وو، په ۲۰۰۳ ز کې
سپمتبر په میاشت کې ۸۹۹۳ میلیاردو ته ختلي دي امریکا ته لنډ مهالی
کسر (Short –term Deficit) دومره لویه تګونه نده، لویه تګونه اوږد
مهالی کسر یا خساره (Long –term Deficit) ده، چې په نږدې
راتلونکي کې به د ټولې امریکا اقتصاد ونیسي د ( GOV
Accountability) مالي پالیسي که ولیدل شي؛ نو دا مالومیږي چې
زمونږ اوسنی مالی بحران د یوه لراتلونکي لوی مالي بحران پېلامه ده،
یوازې په حکومتي اطلاعاتو باور نه وي پکار، هر څه ته له یوې حقیقي
زاویې لیدل پکار وي، د هر بنه او بد څیز د ټول لپاره مناسبه پیمانه پکار
وي د امریکا اقتصادپوهان چې له کومو لارو چارو کار اخلي هغه د ډالرو
اصلي ارزښت نشي په ډاګه کولای په عام ډول چې کوم ځای کې مالي
بحران (Crisis) پیل شي؛ نو خلک لومړی خپل مصارف کنټرولوي او
ورسره د راتلونکي لپاره منظم پلانونه طرح کوي؛ خو امریکا کې خلک
لدې ارخه ډېر کمزوري دي، دوی د بحران په وخت کې هم په کریډیټ کارت
داسې خریداري کوي، لکه مالي بحران چې ورته هسې افسانه ښکاري،
امریکایان خواران څه وکړي، حکومت داد ورکړی، چې مه وېرېږئ !
زمونږ اقتصاد پر ډېرو قوي بنسټونو ولاړ دی.

(٭) کریډت کارت یو ډول سند دی چې پور ورکونکي اداري یې خپلو مشتریانو ته ورکوي، پدې کارت کې په ټاکلې اندازې د پیسو اعتبار وي چې کارت لرونکي یې د خان لپاره بیرو دنه کولای شي، هر کارت خپل ټاکلی وخت او پیسې لري چې د وخت په تیرېدو کارت تمدیدیږي او یا له منځه، د ټاکلي وخت له تېرېدو وروسته کارت لرونکی اړ دی چې کارت ورکونکي اداري ته کارت د اعتبار پیسې، سره د له سوده او نورو فیسونو بیرته ورکړي، په عامه اصطلاح کریډت کارت له چا څخه د پور اخستلو یو ډول دی ژ

په اصل کې امریکایي حکومت مونږ په تیاره کې ساتلي یو، د خزانې
د پخواني معین لین ګرینس ددې ورستې دعوې حواله ورکول

کیږي، چې وايي (د مالي بحران ګرندیتوب ددې خبرې ثبوت دی، چې د امریکايي اقتصاد په خپراوي کې به پرمختګ راشي). دا رجحان (مېلان) په نورو اقتصاد پوهانو کې هم ډېر دی، چې وايي زمونږ د اقتصاد نرم او مساعد (Resilient or flexible) دی، زما په فکر دا نظریه ناسمه ده او باید بیا خلي فکر پرې وشي د امریکايي اقتصاد د نرمښت د دعوې یو دلیل دا دی، چې کله بحران راشي؛ نو په خلکو کې د سپما او له پور څخه د ځان ساتلو جذبه نوره هم زیاتیږي، او سنی بحران د اقتصادي ګرندیتوب غبرګون ګڼل یوازې مبالغه ده.

زمونږ په اقتصادي بحران کې زیاتی له هغه وخته راپیل شو، چې زمونږ د هیوادوالو د پورونو په کلنۍ سلنه کې زیاتوالی راغی او له امله یې د ۲۰۰۴ز کال تر وروستیو د مصرفوونکو پور ۱،۲ تریلیونه ډالرو ته ورسېد. تېرو څلورو کلونو دا پورونه ۴۳ سلنه زیات شوي دي، یانې له ۱۹۹۴- ۲۰۰۴ پورې، یوازې په لسو کلونو کې د مصرفوونکو پورونه دوه چنده شوي دي بیا د ۲۰۰۷ز کال په درېیمې ربعې کې ددې پورونو حجم ۵،۲ ترېلیونه ډالره شو، د درېو څخه د لږو کلونو په لړ کې ۲۵٪ زیات شول او ریکارډ یې مات کړ.

هر کال د مصرفوونکو په پورونه ۳،۴۸۰ میلیارده ډالره زیاتیږي، که څه هم د مصرفوونکو مصارف په اقتصاد کې مثبته اشاره ګڼل کیږي؛ خو دا په هغه وخت کې وي، چې مصرفوونکي خپله پیسې وګټي او مصرف یې کړي؛ نه دا چې پورونه واخلي زمونږ اصلي غمیزه دا ده، چې زیاتره امریکایان په پورونو تکیه کوي، دا پورونه به تر څو وي؟

پردې سربېره زمونږ بل ساده توب دا دی، چې زمونږ د جي ډي پي په زياتوالي کې هم د اصلي ګټې پرځای د پور پېسې حسابيږي او د ډالرو مرګ له همدې ځايه پېل کيږي، ددې کار له امله به، په نږدې راتلونکي کې د امريکا د پور ورکولو قوت ختم شي او مونږ به خپل کريډټ کارتونه هم له لاسه ورکړو.

همدا زمونږ پورونه له کنټروله وتلي او د ډالرو ارزښت (Spending Power) يې بې ثباته کړی دی. څومره چې زمونږ شخصي او دولتي پورونه ډيريږي، همدومره به ورسره د ډالرو ارزښت راکميږي، دا کمی پدې مانا دی، چې زمونږ د راتلونکي لپاره ساتل شوي سپمونې، تقاعدونه او ټولنيز مالي چېکونه به خپل ارزښت له لاسه ورکړي. د ډالرو د ارزښت په راکمېدو کې لوی لاس د چين د زياتېدونکي اثر او رسوخ هم دی، ځکه چين دا وخت د نړۍ تر ټولو ډېر توليدي او صادرونکی هيواد دی.

امريکايانو اوس ملا وتړئ !

د ډالرو د ارزښت لپاره لومړی بايد پورونه خلاص شي او په حکومتي مالي پاليسۍ کې بدلون راشي، که څه هم تاسو د يوه عام پانګوال په توګه پدې حالت کې بدلون نشې راوړی؛ خو لږ تر لږه دا مالي حالت درک کولای شئ، تاسو بايد پوه شئ، چې زمونږ د مالي پاليسيو کومو خاميو او نيمګړتياو مونږ لدې خطرناک بحران سره مخ کړي يو. ددې مالي بحران تر شا ډېر لاملونه پراته وي او ټول په ګډه کار کوي، لکه ډېر پورونه، د جي ډي پي ټيټېدل، سوداګريز او مالي کسر، د روزګار کمی او نور...

پخوا به د مالیاتو او پورونو د سختو پالیسیو له امله بحرانونه رامنځته کېدل؛ خو اوس خبره اپوټه ده، پخوانیو پالیسیو خلک دې ته اړیستل چې خپل مصارف کنټرول او پورونه خلاص کړي. همدا اړینه وه، ځکه د پورونو او مالیاتو سخته پالیسي د مالي بحران لپاره د پرهېز حیثیت لري، پدې صورت کې د مالي حالت بیارغونې ډېر وخت نه نیوه.
نه پوهیږم ولې اوس امریکا د تېر په پرتله بدله شوې ده، زمونږ اقتصاد د (چاغوونکي ناروغۍ) ښکار شوی دي؛ خو له بده مرغه مونږ د ډنګرتوب هیله هم نه کوو، اوس زمونږ د اقتصاد مثال د یوې پوکانۍ (Bubble) په څېر دی چې هره ګړۍ یې چاودلو امکان شته پدې ټولو کې لوی لاس د (فیډرل ریزرو) د پخواني مشر ایلن ګرینس پین دی، پین نه یوازې د ډېرو پورونو اخستلو (Borrowing) حوصله ورکړه، بلکې د حکومتي پالیسۍ په توګه یې معرفي هم کړه.
د فیډرل ریزرو ادارې د قانون له پاس کېدو سره سم، مرکزي حکومت د کرنسۍ مربوط ټول واک همدې ادارې ته سپارلی دی، که څه هم زمونږ په قانون کې د کرنسي د چاپ او ارزښت ټاکلو واک کانګرس ته ورکول شوی ؛ خو فیډرل ریزرو ادارې چې دا واک ترلاسه کړی او د عام ولس هغه غږ هم ټپ شوی چې د کانګرس له لارې به یې حکومت ته رساوه، ځکه دا اداره د ولس پرځای د بانکونو استازیتوب کوي او ګټې یې تامینوي.
په ۲۰۰۷ ز کال کې چې ولسمشر بوش بودیجه وړاندې کړه، نو حساب (کهاته ladger) یې په پکې له سور رنګ څخه تور کړ. د ۲۱ میلیارده ډالرو ګټې تر څنګ یې په کلنیو مصارفو کې ۲۰ سلنه زیاتوالی

وښوده، پداسې حال کې چې د بوش د واکمنۍ پر محال، په حکومتي مصارفو کې د کال ۲،۴ سلنه زیاتوالی راته، دا مصارف د ولسمشر ریګن په واکمنۍ کې ۷،۲ او د کلینټن په دورې کې ۸،۰ سلنه وو. خکه زه وایم چې مونږ باید په حقیقت پوهېدو لپاره یوازې په حکومتي ارقامو باور ونه کړو، ددې لپاره د تاریخي او حقیقي ارقامو پیدا کولو اړتیا ده.

همدا حکومتي ارقام هغه لوبه ده، چې په مرسته یې د کرنسۍ بحران زمونږ له نظره پټ دی، له بده مرغه مونږ پدې اړه فکر هم نه کوو، خکه فیډرل ریزرو اداري پخپلو ناسمو ارقامو مونږ باوري کړي یو، چې هر څه ښه روان دي او رښتیا هم تر څو چې د کریډټ کارتونو شرکتونه خلکو ته پرېمانه پور ورکوي او د بهرته اخستلو موده یې اوږدوي؛ نو مونږ هیڅ ډول خفګان ته اړتیا نلرو، که همدا د خوړل شویو پورونو بار زمونږ په اوږو کېښودل شي؛ نو سترګې به مو وغړېږي

## د دروغو پانګوالي او اقتصاد

«ښکاري امریکایانو په هغه فرضیې باور پیل کړی، چې وایي د هوا په مرسته هم یې شمېره مالي ارزښتونه رامنځته کېدای شي. دوی ته اوس یوازې دا باور ورکول پکار دي، چې زمونږ مالي ارزښتونه له منځه نه ځي، بیا دوی بخپله وایي، هو دا رښتیا هم ناشوني ده»
(رابرټ بریجر)

د جې ډي په اړه زمونږ له کارپوهانو څخه د خبرو ډېره غوښتنه کېږي. څکه دا د ډېرو موضوعاتو یوه مبهمه ټولګه ده او ډېر خلک پرې نه پوهیږي که مونږ غواړې ددې په حقیقت وپوهیږو ؛ نو باید دېته شنو او په هرې موضوع یې جلا جلا پوه شو. د جي ډي یې اوله برخه صعنت دی، چې د اقتصادي ودې او روزګار تر ټولو ښه وسیله ده؛ خو زمونږ د صنعت بنسټ له تېرو څو کلونو راهیسې لړزېدلی او د ډالرو ارزښت یې له خطر سره مخ کړی دی

په ماضي کې د اقتصادي بحرانونو په بیارغونې تر ټولو مهمه ونده د صنعتي تولیداتو وه. د اقتصادي حالت د اندازه کولو ښه پېمانه هم همدا صنعتي تولید (Industrial Production) دی. له ۲۰۰۱ز کال راهیسې د اقتصادي بستونو د پراختیا دعوې کېږي او له هماغه وخته زمونږ صعنتي تولید کنګل دی، مالومات یې لدې هم کېږي، چې د ۲۰۰۱ز کال تر مارچ پورې زمونږ په صنعتي سکتور کې څلور سوه زره دندې له منځه تللې دي

د ۱۹۳۰ز کال له ستر بحران (Great Depression) څخه وروسته، په بشري قوې کې ډېر تېټوالی راغلی دی، زمونږ په صنعتي سکتور چې اوس څه تېرېږي، دې ته یې له بحرانه بل نوم نشو ورکولای، که

مونږ يو ازې په جي ډي پي بحث کوو ؛ نو د صعنتي سکتور دا اړخ به مو له سترګو فنا (Invisible) وي
د صنعتي سکتور دا بحران موقت دی؛ خو اغېزه يې اوږدمهالې وي او د ډالر د ارزښت راکمېدل يکې طبيعي خبره ده. امريکايي رسنۍ نه يوازې دا مالومات ډېر په شد او مد خپروي، بلکې دا بحران د خوښۍ وړ تعبيروي، او له دې راز نه هم پرده پورته کوي، چې زمونږ د ټيټ امتياز لرونکې دندي (Low-Paying Jobs) زياتيږي او لوړ امتياز لرونکي (High-Paying jobs) مخ په کمېدو دي، پدې اړه لاندې ارقام ولولئ، چې بېلابېلو برخو کې، د ختمو شويو دندو شمېر ښايي.

| اداري | له منځه تللې دندې |
|---|---|
| صنعتي سکتور | ۲۲،۲۴۰۰۰ |
| ترانسپورټ سکتور | ۳،۲۹۰۰۰ |
| هوايي لېږد رالېږد | ۱،۲۸۰۰۰ |
| د کمپيوټر برخه | ۲۰۰۰۰ |

لدې ارقامو د روزګار د بدحالت مالومات کيږي، چې د کمپيوټر په برخې کې ۲۰ زره او په صنعتي سکتور ۲۲،۲۴۰۰۰ دندې له منځه تللي دي، په کومو برخو کې چې کاري زمينه برابره شوې په لاندې ډول دي

| برخې | رامنځته شوې دندې |
|---|---|
| روغتيا او ټولنيزې چارې | ۱۷،۸۶۰۰۰ |
| اوسېدنې او خوړو خدمتونه | ۱۰،۰۵۰۰۰ |
| دولتي ماموريت | ۸،۷۲۰۰۰ |

| | |
|---|---|
| بيارغونه | ۸،۲۳۰۰۰ |
| لنډمهالي روغتيايي خدمتونه | ۲،۹۳۰۰۰ |
| ودانيزې چارې | ۱،۲۳۰۰۰ |
| عمده سوداګري | ۱،۲۵۰۰۰ |
| صنعتي بانکداري | ۲۱۰۰۰ |

لدې ښکارې، چې ډېرې دندې په روغتيايي او ټولنيزو چارو لږې دندې په صنعتي بانکدارۍ کې رامنځته شوې دي. پردې سربېره، ودانيزې چارې، صنعتي بانکداري او د ځمکو پېر او پلور خو مخامخ له ګروۍ (Mortgages) سره اړيکه لري. په دوه برخو کې نوې پانګونې ساه پوه کړې ده، لدې پرته يادو برخو له ځانه هېڅ فعاليت نه‌دی ښودلی. په تېرو څو کلونو کې د استوګنې او خدماتو په برخه کې لس برابره زياتوالی راغلی دی، په همدې ډول د لنډمهالي روغتيايي خدماتو ځانګې کار، لس چنده زيات شوی دی. په اقتصاد کې دا ډول کمی او زياتی زمونږ د کوم حالت ښکارندويي کوي؟ دا ثبت شوي ارقام ددې ښکارندويي ده، چې زمونږ د عايد او لګښت لارې چارې بدلې شوې دي، يانې زمونږ د لګښتونو پله درنه او د صنعتي ورتياوو پله سپکه ده.

زمونږ په صنعت کې ژور بدلونونه راځي، مونږ له توليدي حالت څخه خدماتي حالت ته اوړو، دا حالت زمونږ اقتصاد پوهان په اقتصادي وده کې يوه طبيعي چاره ګڼي او له بده مرغه پدې حالت مطمين هم دی. ددوی اطمينان دوه مهم اړخونه له پام غورځولي دي: لومړی دا چې صنعتي سکتور د ښوو کدرونو لرونکی وي او په اهميت يې هغه

خلک پوهیږي چې له صعنتي سکتور څخه سوداګریزې برخې ته بدل شي. دویم، صنعتي سکتور د هغو خلکو لپاره هم د عاید مهمه منبع ده چې له بهرنیو هېوادونو راغلي دي. په صنعتي سکتور کې د کمي له امله، نن زمونږ صادرات د وارداتو په پرتله یوازې ۵۲ سلنه پاتې، چې په ۲۰۰۵ز کال کې ۵۳ سلنه هم ثبت شوي وو. مونږ پدې پوهیږو، چې صنعتي سکتور د ډېر تولید هڅه کوي او له امله یې دندې او کار ډېریږي، ددې برعکس خدماتي سکتور هڅه کوي چې لږ کارمندان ولري، لدې کار سره له یوې خوا اقتصادي توازن له منځه ځي او له بلې خوا د کرنسۍ ارزښت راکمیږي.

مونږ په ورځپانو کې لولو، چې د امریکایي جي ډي پي د ډېروالي یو مهم لامل معجزه یي تولید Miraculous Productivity دی؛ خو ایا دا ریښتیا ده که حکومتي اوازه؟ حقیقي تولید هغه دی، چې د سوداګریز کسر د ډکولو وړتیا ولري.

د مزدوارنو صنعتي تولید هم مهم اقتصادي جز دی، چې د افرادو د کار مالومات ترې کیږي، په ۲۰۰۴ کال کې په کاروبار کې، د مزدورانو د کار سطح تر ۳ سلنه راټیټه شوې وه، بیا په ۲۰۰۵ او ۲۰۰۲ ز کلونو کې دا کچه په ترتیب سره تر ۲ او ۱ سلنې هم راټیټه شوې ده همدا لامل و، چې په ۲۰۰۷ کال کې د اقتصاد په موقتي ګرندیتوب (ځېې) ټول حکومت خوښي ښودله؛ خو په تېرو کرښو کې چې مونږ ددې موضوع په اړه څه وویل هغه تاسو په ذهن کې وساتئ.

اوس هغه سروې وګورئ، چې (سینټر آن بجټ پالیسي پراېټیز) اداري کړې ده، دا سروې له ۱۹۲۹ز راهیسې د (کامرس ډیپارټمنټ) د اسنادو له مطالعې او بررسۍ وروسته شوې ده، ددې سروې له

مخې معاشونه زمونږ په وخت کې تر ټولو ټیټې سطحې ته راښکته شوي دي. د ۲۰۰۱ز کال له مالي بحران وروسته په کلنیو معاشونو کې یوازې ۹،۱ ٪ زیاتوالی راغلی دی او د سوداګریز سکتور ګټه تر ۸،۱۲ سلنه لوړه ده.

چا چې تاریخ لوستی وي پدې پوهیږي، چې د زیربناو په جوړولو کې تر هر څه ډېرې کارې موکې رامنځته کیږي. لکه په نولسمې پېړۍ کې چې په امریکا کې د اوږدو پټلیو غځول او د نهرونو کېندل پېل شول، دندې ورسره د سېلاب د څپو په څېر راغلې. چې له امله یې د اقتصادي ودې کچه ډېره لوړه شوه؛ خو اوس مونږ له داسې یوې معما سره مخ یو، چې کاري موکې مو ورځ په ورځ کمیږي او زمونږ د اقتصادي ودې کچه ورسره ورځ تربلې ورځ پورته روانه ده. کمال دی کنه؟ کېدای شي په نورو سیارو کې دا شونې وي؛ خو پدې خاورینه ځمکه لا تراوسه داسې ندي شوي، دا لکه مونږ چې معاشونه کموو او له کارمندانو د ډېر کار تمه لرو.

دا ساده اصل دی، چې د تولید له ډېرېدو سره کاري موکې ډېریږي او تولید هغه وخت ډېریږي چې په صنعتي سکتور کې پانګونه وشي. تراوسه همداسې کېدل، چې فابریکې به جوړې شوې او ماشینونه به نصب شول؛ نو د تولیداتو د ډېرېدو امکان به هم پیدا شو؛ خو نن د حکومت په حواله زمونږ د اقتصادي ودې ګراف یې له کومې پانګونې مخ په بره روان دی. دا څنګه شونې ده؟

ددې متضادې اشارې یوازې یو ډول منطقي تشریح کېدای شي او هغه دا ، چې زمونږ د اقتصادي ودې د ګراف شاته حتماً د صنعتي لاملونو پرځای ارقام پراته دي اوس پوښتنه داده، چې مونږ په

اقتصاد باور وکړو که په ارقامو؟... خواب که مونږ اقتصاد وایو نو باید له حقیقتونو انکار وکړو، ځکه په یاد حالت کې هیڅ مناسب اقتصادي دلیل نشته زمونږ په مالي نظام شک کېدای شي، چې زمونږ د جي ډي پي په لوړوالي کې به ډېره زیاته مبالغه کیږي، ددې په اړه ورکړل شوي ارقام نه یوازې دروغ دي، بلکې غولونکي هم دي تولې نړۍ کې د انفلاسیون بنسټ د بیو په بدلون ولاړ دی؛ خو امریکایي اقتصادپوهانو ددې فورمول پرځای د مصرفوونکو ډاډ او باور د انفلاسیون بنسټ ټاکلی دی، چې له مخې یې د معیار ښه والی او نورې ضمني اغېزې د انفلاسیون په کمي کې مهم رول لوبوي، ضمني اغېزې پدې مانا چې، که په بیو کې څه کې بدلون راشي نو مصرفوونکي د خپل پېر ډول بدلوي، د بېلګې په توګه که د غواېي غوښه قیمته شي خلک د چرګ غوښې ته مخه کوي، یا که د هوایي ټکټونو بیه لوړه شي؛ نو خلک په موټر او ریل ګاډو کې سفرونه کوي

ددې ترڅنګ زمونږ اقتصادي راپورونه هم ډېر پېچلي، مبهم او یو ډول مداریتوب ته ورته دي، پدې راپورونو کې انفلاسیون داسې ښودل کیږي، چې هر کال پکې دوه (پواینټه) کمی راځي او له امله یې جي ډي پي لوړیږي؛ خو د انفلاسیون حقیقي کچه لدې ډېره لوړه ده، چې مونږ ته ښودل کیږي جي ډي پي هم دومره نه لوړیږي، چې مونږ ته ښودل کیږي، که مونږ د حکومت په اعلان شویو جعلي ارقامو باور وکړو؛ نو لاربه رانه ورکه شي او غمیزه دا ده، چې زمونږ د کمزورې پانګونې او سپما هیڅ ډول ارزښت به هم نشي پاتې

د روايتي او دولتي راپورونو له مخې زمونږ سوداګري، يو ځل بيا په عروج کې ده، په ځانګړي ډول د لوړې ټکنالوجۍ (High- Tech) سکتور ډېر مخکې دی؛ خو پدې پرمختګ پوهېدو لپاره بايد تاسو په احصائيې کې دوکتورا ولرئ پردې سربېره د کمپيوټر په برخې کې د شوې پانګونې سره د همغږې شوي انفلاسيون مالومات نه ورکول کيږي، بيورو آف ايکانمکس اناليسس ( Bureau of Economic Analysis ) اداره يې لامل دا ښايي چې د (اقتصاد ډيپارټمنټ) پدې اړه ډېر پرېشانه دی، ځکه بيې ډېرې ګرنډې راټيټيږي او په ارقامو کې يې ابهام پيدا کړی دی

د توليد د زياتېدو کچه د کمپيوټر د اصلي کارونې پرځای، ددې د ممکنه توليدي وړتيا څخه اخستل کيږي مونږ پرې نه پوهيږو. ځکه ددې شمېر زمونږ له وسه پورته کار دی، همدا ډول د کمپيوټرونو د بيو په تاکلو کې هم مبالغه کيږي، چې وروسته بيا په جي ډي پي کې شامليږي او هغه پرې پورته ښودل کيږي. د کمپيوټرونو د بيو ټاکلو او له هغو څخه د ترلاسه شوې ګټې يوه بېلګې وګورئ:

څه وخت مخکې د کمپيوټر جوړولو شرکتونو يو رپوټ خپور کړ، چې له ۲۰۰۲ز کال د لومړيو درېيو مياشتو څخه تر ۲۰۰۳ز کال درېيو مياشتو پورې، دې کمپنيو له ۳۷۲ ميلياړده څخه تر ۳۹۰ ميلياړده ډالرو عايد درلود او ۲،۱۲۸ ميلياړده ډالر يې ګټلي دي؛ خو تاسو به ددې حقيقت په اورېدو حيران شئ چې اصلي ګټه يوازې ۴،۱۲ ميلياړده ډالره وه، چې له ۹،۷۱ څخه تر ۳،۸۸ ميلياړده ډالرو عايد څخه ترلاسه شوې وه د BEA مداريانو د جي ډي پي پوکانۍ ته داسې هوا ورکړې، چې خلک يې په اړه پلټنې او پوهې ته اړ دي

تاسو صنعتي انقلاب او د هغې سبقونه را یاد کړئ، چې تکنالوجي به راغله؛ نو ځان سره به یې بې شمېره بدلونونه راوړل. دې سره نه یوازې په ټولنې کې د صنعت جال خپرېده بلکې ډېرې زیاتې کاري موکې یې هم رامنځته کولې. ددې ترځنګ به د هر شخص په ژوند کې بدلون لیدل کېده.

دلته زمونږ د تکنالوجي انقلاب وګورئ، چې (ایندي کیسلر) په ای پیډ (IPod economy) تعبیر کړی دی، آیا مونږ دې ته د صنعتي انقلاب ویلای شو؟ زما په نظر دې ته بې له ځان غولونې بل څه نشو ویلای.

**د سپما افواهات:**

د نیشنل انکم اینډ پروډکټ اکونټ (د ملي عوایدو او تولیداتو حساب NIPA) او نورو دولتي ادارو د راپوروتو له مخې، د سپما کچه ډېره اغېزناکه ده؛ خو د نورو غیر جانبداره ماخذونو له مطالعې څخه مالومیږي، چې حقیقت بل ډول دی. ځکه دا ارقام خپله مبهم دي او ټول اقتصادي حالت یې مبهم کړی دی، زمونږ د حقیقي اقتصاد ارقام له حکومتي ارقامو سره ډېر توپیر لري، له دې ارقامو مالومیږي، چې زمونږ اقتصاد د پورته پرځای ښکته روان دی

د بېلګې په ډول، په ۲۰۰۱ز کال کې د غیر مالي (Nonfinancial) سکتور ګټه له مالیې ګرځولو پرته ۳۵۷ میلیارده وه، یعنې پدې سکتور کې اقتصادي ګراف ښکته کیږي؛ خو د حکومت جادو وګورئ، چې په ۲۰۰۲ ز کال کې ددې سکتور ګټه ۸۱۴ میلیارده ډالره ښودل شوې ده، ورسره دا دعوه هم شوې، چې په یاد سکتور کې د

ګټې مقدار مخ په زیاتېدو دی. په تولیدي سکتور کې چې باید ګراف لوړ شي هلته له تېرې یوې لسیزې ګراف په پرلپسې ډول رانښکته کیږي او په مقابل کې یې په غیرمالي سکتور کې ګراف ورځ تر بلې لوړیږي، آیا دا شونې ده؟ له دې مالومیږي چې حکومت مبالغه کوي، که مونږ د تېرې لسیزې ارقام په نظر کې ونه نیسو او غیر مالي سکتور له روایتي.صنعتي سکتور سره پرتله کړو؛ نو تولې حکومتې دعوې دروغ ښکاري

خلکو کورونه کرایه ونیول، د کورنو کرایه لوړه شوه او د خپلو مصارفو پوره کولو لپاره مصرفوونکو نور پورونه واخستل، حکومت دا پورونه هم د اقتصاد په پرمختګ کې حساب کړل؛ خو حقیقت دا دی، چې په عایداتي مصارفو کې کمی او د پور په مصارفو کې زیاتی راغلی دی، حکومت دې ته ګټه وایي. ددې تولو تر شا همدا مخفي لاملونه پراته دي، چې اقتصاد ته د ګټې پرځای تاوان رسوی

زمونږد اوسني اقتصادي حالت لپاره یوازې دا منطق سم دی، لکه څنګه چې یو محدود (Limited) شرکت د خپلو کارونو پورې محدود وي، همداسې یو عام مصرفوونکی هم د یو څو اقتصادي قوانینو پابند وي؛ خو دلته برعکس د دومره لویو تاوانو سره بیا هم، مصرفوونکي نه یوازې خپل چارې نه منظموي بلکې د خپلو ارتیاو پوره کولو لپاره غټ غټ پورونه هم اخلي، د امریکا په اقتصاد کې د نورو نیمګړتیاو ترڅنګ یوه نیمګړتیا دا هم ده، چې زما په فکر باید مخه یې ونیول شي.

**د بانکوالۍ تر ټولو بد بحران:**

د ۲۰۰۸ز کال په سپتمبر کې، د بانکوالۍ تر ټولو ستر بحران رامنځته شو. دا هغه وخت و، چې د امریکا دویم تر ستر بانک (Lheman Brothers) کسر یا خساره د زغم له پولو واوښته، د نیویارک د اسهامو په بازار کې یې د یو سهم (Share) بیه له ۸۰ ډالرو څخه ۲۵.۱ ډالرو ته راښکته شوه، یانې ددې بانک پانګه له ۱۸۵ میلیارده ډالرو څخه یوازې ۵.۵ میلیارده ډالرو ته راښکته شوه. دې سره په ۱۳۰ هیوادونو کې ددې بانک، د ۱۲ زرو کارکوونکو دندې له ګواښ سره مخ شوې. بیا په همدې ورځ (د ۲۰۰۸ ز کال د سپتمبر په ۱۵) د امریکا د بیمې نړیوال شرکت (امریکن انټرنشنل ګروپ) تاوان وکړ او له حکومت څخه یې ۸۵ ملیونه ډالر پور کړل

حالت دومره خراب شو، چې د نیویارک د اسهامو بازار په یوه شپه کې ۴۵۰ پواینته راښکته شو. یوازې د سپتمبر په میاشت کې د بانکونو ۱۵۹ زره کارکوونکي له خپلو دندو ګوښه شول، پدې کې ۳۰ زره د وال سټریټ کارکونکي وو. لدې سره له اروپا نیولې تر آسیا پورې ټول بانکوال نظام ولړزېده، امریکا د خپل بانکوال نظام د ساتلو لپاره، لیهمن برادرز او AIG پخپل واک کې واخستل، د امریکا د حکومت ۷۰۰ میلیارده ډالرو مرستې، د یوې شپې یونیم تریلیون ډالر تاوان نشو دکولای

د کارپوهانو په وینا، ددې بحران له امله په نړۍ کې ۲.۷ تریلیونه ډالر تاوان کېدای شي او ملیونونه خلک له خپلو سپماو څخه لاس

وینځلی شي. لدې مخکې په ۱۹۲۹ز کال کې هم په امریکا کې همداسې یو اقتصادي بحران راغلی و، چې له امله یې سلګونه امریکایي بانکونه دیوالیه شوي وو، د امریکا د اسهامو بازار سقوط کړی و او ډالر ټیټ شوي وو. په هغه وخت کې هم د امریکا ولسمشر روز ویلټ د امریکایي ولس، له مالیاتو څخه بانګونه وکړه او خپل بانګوال نظام یې له سقوطه وساته؛ خو اوس ۷۸ کاله وروسته یو ځل بیا دا نظام ډېر په شدت مخ پر ځوړ روان دی.

د امریکا ددې بحران اصلي لامل د سود ظالمانه سیتسم دی، په ظاهره لامل دا و، چې بانکونو د سود ترلاسه لپاره، خلک د مستۍ او عیاشۍ په لاره روانه کړل او ورته یې وویل چې راشئ مونږ پوره درکړو ! د بېلګې په ډول یوه امریکایي په دوه سوه زره ډالر یو کور واخست، یو کال وروسته ورته له بانک څخه خبر راغی، چې ستا د کور ارزښت (Value ) اوس نیم شوی دی؛ نو مونږ به ۴۰ زره ډالر نور درکړو، چې تاسو پرې ځانته نوی موټر او د کور سامان واخلئ. د کور خاوند به د خپلو اړتیاوو پوره کولو لپاره له بانک څخه نور ۴۰ زره ډالر پور کړل، دې بانکونو د سود لپاره داسې خلکو ته هم پورونه ورکړل، چې د بېرته خلاصولو وړتیا یې نه لرله.

دې ډول پورونو ته په اوسني بانکي نظام کې N.I.N.J.A اصطلاح کارېږي، یانې No Income No Job Aplication )هغه پور اخستونکي چې نه عاید لري او نه دنده)، کله چې دداسې پور اخستونکو شمېر زیات شو؛ بانکونو احساس کړه، چې ددوی دا پورونه بېرته نه راوځي؛ امریکایي حکومت ته یې لاس اوږد کړ،

ورته يې وويل که تاسو مرسته ونه کړئ، مونږ بايد بازار پرېږدو او وتښتو.

د امريکا حکومت پدې پوهيده چې، که دا بانکونه له صحنې ووځي، داسې ګډوډي به جوړه شي چې حکومت کول به ستونزمن وي، ولسمشر بوش د بانکونو د ژغورنې لپاره کانګرس ته د ۷۰۰ مليونو ډالرو وړانديز وکړ، په لومړۍ مرحلې کې کانګرس دا وړانديز رد کړ، د ردوونکو ډېرو کسانو اړيکه د بوش له خپل ګوند (جمهوري غوښتونکو ) سره وه سمه پرېکړه دا وه، چې دا ۷۰۰ مليونه ډالر بايد د بانکدارونو جيبونو ته د تللو پرځای، په صنعت کې وکارول شي، چې عامو خلکو ته زورګار پېدا شي، څکه دا ۷۰۰ مليونه ډالر د همدې عوامو پيسې وې، چې د ماليا تو په ډول ترې تولې شوې وې

ددې بحران دويم لامل د ولسمشر بوش، احمقانه جګړه ايزه پاليسي وه، چې په تولې نړۍ کې يې د ترهګرۍ سره د مبارزې په نوم جګړه پيل کړه د بوش جنګي جنون د امريکا جنګي تاوان په يوه مياشت کې ۷۰ ميليارده ډالرو ته ورساوه، يانې په يوې دقيقې کې ۱۱۲۵۰۰ ډالرد دې احمقانه جګړو د امريکايي اقتصاد ملا ماته کړه، ولسمشر بوش چې د بانکونو لپاره (۷۰۰) مليونه ډالره تخصيص ورکړي و، نېدې همدومره د ولس د مالبې پيسې يې د ترهګرۍ پرضد جګړو کې ډوبې کړې، لدې جګړو څخه يوازې امريکايي بانکونو ګټه پورته کړه او داسې جشنونه يې وکړل، چې په يوه شپه کې يې لکونه ډالر په شرابو مصرف کړ، له بدمرغه ددې معاشونه له

مخکې په مليونونو ډالر وو...... دا د اوسني پانګوال نظام د بحران لنډه کيسه وه.
لدې بحران وروسته يو ځل بيا، د لويديځ پانګواله ترهګري او مکاري خپل حد ته ورسېده، د GIA د ترون او د ازاد بازار لويديځ پال نظام له مخې لويديځ نړيوال شرکتونه هر هېواد ته ننوتل او هلته يې د خپلو ګټو جالونه خپاره کړل، له خلکو څخه د شتمنۍ لوټلو او د قومونو او کلتورونو د استحصال ازادي يې ترلاسه کړه؛ خو اوس چې د لويديځ د ناسمو پاليسيو له امله د نړۍ اقتصاد له بحران سره مخ دی، مونږ وينو چې امريکا، برطانيه، فرانسه او نور لويديځ هيوادونه يوازې د خان ژغورلو فکر کوي او د بيوزله ولسونو د ژغورلو هېڅوک نشته لويديځو هيوادونو لومړی د عربو او نورو ختيځو هيوادونو په پانګو منګولې خښې کړې، دې هيوادونو د لويديځ په پانګوال نظام باور کړی و او له تېرو ۴۰ – ۵۰ کلونو يې خپله ټوله شتمني د امريکا او اروپا په بانکونو کې خوندي کړې وه.
په هر صورت د نړۍ اقتصاپوهان پدې حقيقت ښه پوهيږي، چې بوش د ۷۰۰ مليونه ډالرو پکيج ورکړ او د خپل پانګوال نظام د ژغورلو هڅه يې وکړه؛ خو دا هڅه يې، د کوما تاروغ ته د ماشين په مرسته د سا ورکولو په مانا وه، دا يوازې يوه لنډمهالې هڅه ده، رښتيا دا ده چې د حسد او حرص پر بنسټ ولاړ پانګوال نظام د غورځېدو او ټوټه ټوټه کېدو په حال کې دی.
اوسنی پانګوال نظام (Capitalism) له شلمې پېړۍ راهيسې په ټولې نړۍ برلاسی او رايج دی، ددې نظام بنسټ په سود، سپما او مالي احتکار ولاړ دی. ددې نظام پاېله دا ده، چې په نړۍ کې شتمن

لا شتمن او غریب لا غریب شي او د ټولې نړۍ شتمني یوازې څو لاسونو ته راټوله شي په اوس وخت کې د ټولې نړۍ له ۸۰- ۸۵ سلنه پانګه د څو نړیوالو کمپنیو ملکیت ګرځېدلی، د نړۍ په نږدې هر هیواد کې شتمني او وسایل په څو محدودو لاسونو کې دي د هند نفوس نږدې یو میلیارد دی، د ۸۰۰ ملیونو خلکو په مقدار شتمني یوازې له څلورو مشهورو شتمنو سره ده نړۍ کې دوه طبقې ډېره په زغرده رامنځته کیږي: لومړی ډېره شتمنه او دویمه ډېره بېوزله، منځنی طبقه ختمېدونکې ده.

داسې ښکاري، لکه د لویدیځ په ذهني غلامۍ کې، چې ټوله نړۍ د لویدیځ د منځنیو پېړیو تیاره دور (Dark Age) خواته روانه ده. هغه وخت چې په اروپا کې اربابان (لارډ)، جاګیرداران او ددوی غلامان وو ، حتی د نړۍ ټول حکومتونه د امریکا او اورپا د خاورې په شمول ددوی غلامان دي اوس د جمهوریت مانا دا نده چې (خلک د خلکو د ګټې لپاره په خلکو حکومت وکړي) بلکې اوس جمهوریت پدې مانا دی، چې شتمن خلک په عامو خلکو د شتمنو د ګټو ساتلو لپاره حکومت کوي، دې غیر طبیعي او غیر انساني اقتصادي نظام ټوله نړۍ د بربادۍ کندې ته رسولې ده.

د لویدیځ دا پانګوال نظام داسې پیل شو. کومو خلکو چې د سرو او سپینو زرو کاروبار کاوه، د خپلو سرو د ساتلو لپاره یې خوندي بکسونه او سیفونه جوړ کړي وو ، عامو خلکو به هم خپل سره او سپین زر دوی سره خوندي کول، دې زرګرانو به خپله تاکلې کچه پیسې ترې اخستې او خلکو ته به یې رسید ورکاوه، چې ددې سند لرونکي مونږ سره دومره سره یا سپین زر امانت ایښي دي، د رسید

لرونکي به پدې سند کور، ځمکه یا بل څه پېرل یا به یې خپل پور خلاصوه. پدې ډول به د شرو زرو د سکو پرځای سند چلېده او سره زر به له زرګر سره خوندي پراته وو، دا چالاک زرګران پدې پوه شول، چې خلک د خوندي کړیو سروزرو لسمه برخه مصرفوي او نهه نورې برخې له دوی سره خوندي پاتې کیږي؛نو دوی د هرې برخې لپاره بېل بېل سندونه پېل کړل.

بیا چې په اروپا کې اوسنی بانکي نظام پېل شو. زرګرانو تیار پخپلو خزانو کې سره زر لرل؛ په بانکونه یې انحصار وکړ، عوامو سره که کومه لږه شتمني پاتې وه، هغو ته دې چالاکو زرګرانو دا وسوسه ور واچوله چې، که تاسو پخپله سوداګري وکړئ کیدای شي تاوان پکې وکړئ، ددې تاوان نه د خلاصون لپاره تاسو خپله شتمني مونږ ته راکړئ، مونږ به تاسو ته هره میاشت په ټاکلي کچه ګټه (Fixed profit) درکوو، پدې ډول د عامو خلکو ساتل شوې پیسې هم ددوی لاس ته ورغلې. دا ټول زرګران د بانکونو خاوندان او د ټولې اروپا (بادارن) شول. سود خوړل د ځانځاني، ظلم، استحصال او غلا فکر پیدا کوي، زیاتره لیدل شوي چې سود خور د شتمنۍ په حرص په غلا، حرامو او جوارۍ اخته شوی وي. دویمه دا چې سود کینه او حسد پیدا کوي، چې له امله یې شخړې او جګړې پیښیږي، سودخوار جګړې رامنځته کوي او ولسونه خپل غلامان کوي. د بېلګې په ډول په لومړۍ نړیواله جګړه کې په برطانیه او دویمې نړیوالې جګړې کې په امریکا هیڅ ډول پور نه و. دې بانکدارانو د جګړې اور ته لمن وهله. په بېلابېلو چلونو یې امریکا، برطانیه او حتی ټوله اروپا جګړې کې ښکېل کړه او پورونه یې پرې واړول. دې

وینه زبېښونکو بانکدارانو يو خل بيا په اوسنۍ بانکدارۍ کې بحران رامنځته کړ او يو خل بيا يې د ولس له مالياتو لاس ته راغلي ۷۰۰ میلیارده ډالر ترستوني تېر کړل دا مکار بانکدار هېڅکله پوره خبره نه کوي، ددوی اصلي او وېرونکې څېره هېڅکله نه راڅرګندېږي. د واشنګټن ډي سي د سرک يوې خواته نړيوال بانک دی او بلې خواته د IMF بانک. يو نړۍ ته پور ورکوي او بل يې ترې بېرته اخلي.

نن ورځ د سودي نظام (Interest system) له امله د نړۍ له ۹۰ – ۹۵ سلنه وګړيو ژوند له ستونزې سره مخ دی. سود او قيمتي لازم او ملزوم دي. له کومې ورځې چې دې نظام په نړۍ خپلې خونخوارې پنجې لګولي. له هغې ورځې قيمتي زياتيږي. د بېو د لوړولو دا جنون تر دې رسيدلی، چې د امريکا حکومت هر کال خپلو بزګرو ته ۱۲ میلیارده ډالر ورکوي، دا پیسې ددې لپاره ورکول کیږي، چې هغوی د بېو لوړولو لپاره کرنيز حاصلات راکم کړي د اقتصاد ټول تاريخ ددې شاهد دی، چې کله سودي اقتصاد له بازار خرابېدو سره مخ شوی؛ نو انسانیت یې له وېرووونکی انجام سره مخ کړی او د مليونونو خلکو د عمر سپما ډوبه شوې ده.

په اوسني دور کې داسې اقتصادپوه نشته، چې په ټولنې یې د سود منفي اغیزې نه وي منلي، د اوسني نظام ټول اقتصاد پوهان که د هر هیواد وي، پر دې متفق دي، چې سودي نظام به ډېر زر ټوله نړۍ برباد کړي ډېر زر به د نړۍ شتمن خلک بانکداران شي، ددې په مقابل کې به، چې د نړۍ په ۲ میلیارده خلک کوم غبرګون ښایي، اقتصاد پوهان یې له تصور څخه هم وېرېږي

دوی ټول پدې نظر دی، چې له اقتصادي تباهۍ نه د نړۍ ژغورولو لاره د سود بندول دی، یا دې د سود کچه صفر شي او یا دې یوازې دومره پرېښودل شي، چې ایله د نظام مصارف پوره کړي یانې یو یا یونیم فیصد. له تېرو ۸ کلونو راهیسې EEC د سود کچه ۵،۳ سلنه ساتلې، چې د کمولو اړتیا یې ډېره شدیده ده؛ خو بانکونه غواړي دا نظام روان وساتي، ځکه د همدې سود له امله ددوی یو یو تن دومره شتمن شوی، چې د نړۍ د څو هیوادونو هومره شتمني لري، لکه جارج سورس، روشیلډ او نور... له دوی څخه یوازې یو کس د انګلستان او فرانسې په ځېر قوي اقتصاد په یوه شپه کې له منځه ورلای شي. جارج سورس پخوا داسې کړي، په ۱۹۸۰ ز کال کې یې د لرې ختیځ (اندونیزیا، مالیزیا، هانکانګ...) اقتصاد په یوې شپې کې تباه کړی دی.

لویدیځ چې تر اوسه د خپل ازاد بازار په پالیسۍ فخر کاوه او ټوله نړۍ یې ترې پیروۍ ته رابلله، اوسني بحران پرې سوالیه نښه کش کړې ده. د انګلستان مشهورې ورځپاڼې ډیلي ګاردین په یوې تبصرې کې لیکلي: «تر اوسه وېل کېده چې جمهوریت او ازاد بازار دوه غبرګوني خویندې دي. بحران ثابته کړه چې ازاد بازار له جمهوریت سره هم نشي تلی، همدا لامل دی، چې امریکا او اورپايي حکومتونه خپل بانکونه ملي (نیشنلایز) کوي، تر دې چې لویدیځې رسنۍ بوش ته کامریډ بوش او USA ته USSAR یانې د امریکا متحده سوسیالېست ایالات وايي.

که موخه د انسانیت پرمختګ او ارامي وي؛ نو له دې ظالم او بې انصافه پانګوال نظام سره باید خدای په اماني وکړو. ځکه دا مونږ

تجربه کړ او وموليدل، چې پانګوال نظام (Capitalism) يواز
شتمنو خلکو ته ګټه رسوي او يوازې د هغوی ګټې خوندي کوي
چې له امله يې شتمن، شتمن کيږي او غريب لا هم غريب کيږي، لد
امله ياد نظام ته په هيڅ صورت عادلانه نظام نشو ويلای.

# تباه کونکي بې ځایه مصرفونه

«ما په موټرو، مرغانو او شرابو د اوبو په څېر پیسې وبهولې او کومې چې پاتې شوې هغه مې فضول خرڅ کړې»

(جورج بیسټ)

په دنډنو او سپما کې چې کومې لوړې ژورې راغلې، د خلکو اکثریت عموماً ورسره ترلې وي، دا چې په صنعتي سکتور کې د لوړو معاشونو دندې ختمېږي او پرځای یې د کمو معاشونو سوداګریزې دندې رامنځته کېږي، دا سې حقیقت دی، چې انکار ترې نشي کېدای او کارکونکي خلک پرې ښه پوهېږي مونږ چې د سوداګریز کسر خبره کوو؛ نو ارینه نده چې فرد دې ورسره اړیکه ولري؛ خو دا مهمه ده چې د ډالرو د بیې په راکمېدو کې سوداګریز کسر څه رول لوبوي

سوداګریز کسر (Trade Deficit) پدې مانا دی، چې د صادراتو په پرتله واردات زیات شوي دي. او د کرسنۍ په ارزښت یې مستقیمه منفي اغېزه کړې ده. سوداګریز کسر پدې مانا دی، چې مونږ په بهرنیو هیوادونو کې له هغې ډېرې پیسې مصرفوو، څومره چې پخپل هیواد کې ګټو. یانې زمونږ د صنعتي تولیداتو ګټه. زمونږ له مصارفو کمه ده لکه ستاسو د کورنۍ مصارف چې ستاسو له ګټې څخه ډېر وي، نو ډېر ژر به تاسو له ستونزې سره مخامخ شئ. یانې که تاسو هره میاشت دوه زره ګټئ او څلور زره مصرفوئ نو څه به کېږي؟ د کسر مثال همدا دی

سوداګریز کسر له مهمو اقتصادي فکتورونو څخه دی، چې د ډالرو ارزښت تر هر څه ډېر اغېزمنوي، زمونږ حکومتي مصارف چې له سوداګریز کسر سره یو ځای شي؛ نو د ډالرو ارزښت لا پسې راکم کړي پردې سربېره که د ډالرو د (د پېر قوت) له زاویې وګورو؛ نو سوداګریز کسر زمونږ د اقتصاد د ربیمه ستن ده

# د ډالرو مرګ

اوس به مونږ په عمومي ډول پر امریکایي اقتصاد بحث وکړو، چې کوم
خای کې دی، امریکا یو وخت دومره توکي تولیدول، چې له امریکا سربېره
ټولې نړۍ کې زمونږ تولیدات پلورل کېدل د سوداګرۍ او راکړې ورکړې
په میدان کې مونږ نړۍ ته لاربنوونه کوله، د ټولې نړۍ په اقتصاد
امریکایي توکي خپاره وو؛ خو اوس په تولیداتو او سوداګریزو توکو
زمونږ د انحصار رخ نورو هیودونو ته اوښتی، پدې مهمو هیوادونو کې
چین،هند، کولمبیا، روسیه، برازیل، میکسیکو او نور... شامل دي، اوس
امریکایي مصرفوونکي په سوداګرۍ کې د پلورونکو پرخای پېرودونکي
دي، غمېزه دا ده، چې دا بېلابېل مصرفونه د سوداګریزې ګټې پرخای له
پورونو ځخه کېږي

که مونږ دا توکي له خپلې سوداګرۍ څخه په ترلاسه شوې ګټې پېرودلای؛
نو سوداګریز کسر به دومره زیانمنوکی نه و، دا به پدې مانا و، چې مونږ
یوازې خپل خایي تولیدات مصرفوو؛ خو اوس له بده مرغه زمونږ کار
برعکس دی، له نورو هیوادونو توکي اخلو او پرلپسې په پورونو کې
ډوبېږو، زمونږ شتمني نورو هیوادونو ته روانه ده، پر مصرفوونکو پورونه
لوړ شوې دي او د حکومتي جارې حساب کسر زمونږ ملیاردونه ډالر پور
لاپسې ډېروي

دا طبیعي او ارینه ده، چې مونږ د خپل راتلونکي پلان، سبا او تقاعد
لپاره فکرمن شو، ځکه کله چې مونږ اخر عمر ته رسېږو نو ډالرو به خپل
ارزښت له لاسه ورکړی وي او زمونږ سپمولې پیسې به هیڅ ارزښت ونلري
اوس پوښتنه دا ده، چې د پورونو په اسا روان دا مات ګوډ نظام به تر څو
همداسې روان وي؟ ددې یوه بېلګه داسې ده، لکه تاسو چې خپله دنده
پرېږدئ او په کور کښېنئ، پور اخلئ او په هماغې پور پیسو خپله ګوزاره
کو؛ نو تاسو به تر څو داسې ګوزاره کوئ؟ دا بېخي عین حالت دی چې

اوس ورسره امریکا مخ ده او څه وخت وروسته به مونږ ټول له دې تباه کونکې حالت سره مخ کیږو.
دا موضوع مخامخ د ډالرو په ارزښت اغېزه کوي او له امله یې اقتصادي حالت لاپسې ترینګلی کیږي. مونږ پوهیږو چې ډالر له بد حالت سره مخ دی. ځکه د نورو هیوادونو د کرنسیو په مقابل کې یې ارزښت کمیږي. که څه هم امریکا ډېره زیاته شتمني لري؛ خو ستونزه دا ده، چې دا شتمني ډېره زر مصرفیږي د تاریخ سبق هم دا دی چې، که تاسو هر څومره شتمن یاست؛ خو شتمني مو تولیدي (Productive) نه وي. یوه ورځ به بیوزله شئ فیډرل ریزرو وایي (هر څه سم دي)؛ خو بیا هم د ډالرو ارزښت پرلپسې کمیږي. دا پدې مانا ده، چې ستاسو د سپما ارزښت هم راکمیږي. ځکه هر څومره چې د ډالرو ارزښت راکمیږي ورسره ستاسو د (پېر قوت) هم راکمیږي او که دا لړۍ همداسې روانه وي؛ نو پایلې به یې سختې شي
د ډالرو پرلپسې راټیټیدو، د کرنسی کارپوهانو سربېره ډېر خلک پریشان کړي دي او زیاتره یې تراوسه پدې موضوع نه پوهیږي CNBC سره په مرکو کې ځینو کارپوهانو ووېل، دوی پدې نه پوهیږو چې د ځینو کمزورو اقتصاد لرونکو هیوادونو کرنسي ځنګه لوړه ده. امریکایي حکومت او اقتصادپوهانو لپاره دومره غوښن سوداګریز کسر هیڅ ستونزه نده، ددوی په فکر دا یوه طبیعي چاره ده، چې د تېز پرمختلونکي اقتصاد لرونکي هیوادونه، کرنسي واردوی او د ارام پرمختلونکي اقتصاد لرونکي هیوادونه کرنسي صادروی. هغه امریکایان چې اروپا ته سفر کوي شاید ووایي، چې د اروپا سفر ډېر قیمته دی، که څه هم پدې برخه کې یو څه د اروپایانو پېره شته؛ خو اصلي لامل د ډالرو کم ارزښت دی، چې باید پر وګتل شي
اوس باید لدې دعوې هم تېر شو، چې د نورو هیوادونو په پرتله زمونږ اقتصاد قوي دی. ځکه امریکا ده که څه هم زمونږ د سوداګریز کسر کچه

دومره لوړه نده لکه د نورو هیوادونو چې وینو؛ خو بیا هم دا د ملي عاید
پرتله ډېره لوړه ده. خکه مونږ د تولیداتو پرځای مصرف کوو.
زما د نظر د مخالفینو یو دلیل دا دی، چې کله د لویو اقتصادونو له خوا
وړو اقتصادونو ته پانګه روانیږي دا د ګړندۍ اقتصادي ودې مانا ده.
ددې نیمګړي دلیل مانا دا ده، چې کسر خواته تلونکي هیوادونه له خپلو
تولو بې عدالتیو سره بیا هم د خپلو تولیداتو په پرتله ډېره ګټه ترلاسه
کوي زه ددوی په خواب کې د ۱۹۲۰او ۱۹۳۰لسیزې د مشهور اقتصاد پوه
(جان راهنسن) حواله را اخلم:
«که د پانګې داخلي ریخت(Inflow) تاسو ته، ستاسو له تولیداتو څخه د
ډېر مصرف اجازه درکوي؛ نو دا بیا بربادي ده او که په ملي ګټې د
پانګونې اجازه درکوي نو بیا د پانګونې د ډول پورې اړه لري».
اوس مونږ د شمېر حقایقو ته راخو. چې زمونږ په جې ډي پي کې له ۲ سلنې
څخه د ډېرې پانګې داخلي ریخت د مثبې پانګونې پرځای زمونږ پورونه
ډېر کړي دي، پردې سربېره یې د امریکایي پانګونې په پرمختګ کې کوم
زیاتوالی ندی راوړی. زمونږ د سوچه پانګونې کچه د نړۍ په تیټ لست کې
ده. څکه مونږ خپل تولید ته پام نه کوو او په پورونو ژوند تېروو، که څه هم
اوس یې منفي اغېزې نه ښکاري؛ خو یوه ورځ به یې پایلې ډېرې خطرناکې
وي.
اوس چې په پور کوم مصرفونه کوو، دا پدې مانا ده، چې مونږ خپلې
فابریکې او زېربناوې په هغه خلکو پلورو چې پور ترې اخلو. په شخصي
شتمنۍ کې عمومي کمی (Steep Decline)نه یوازې زمونږ د ډېرو
لګښتونو نښه ده؛ بلکې پدې مانا هم ده، چې زمونږ د پانګونې کچه تیټه
او د مالي کسر کچه لوړه ده. د امریکا په تاریخ کې په ۲۰۰۵ ز کال کې په
لومړي خل د پانګونې کچه۱- (منفي یو ) ته لویدلې وه.

امریکا د نړۍ تر ټولو قوي اقتصاد درلود؛ خو اوس دا منل شوې حقیقت دی، چې امریکا قوي اقتصاد نلري زمونږ ورځپاڼې ته هره ورځ لیکونه راځي، چې لوستونکي پکې خپل نظر څرګندوي، پدې کې ځینې سرټکوي کوي، چې زه ولې د امریکا په مالي پالیسیو نیوکې کوم ماته وایي، تا څنګه دا جرات کړی چې د امریکا اقتصادي برتري ( Economical Superiority ) دروغ ګڼې؟ خو تاسو پوهیږئ چې ربښتیا ترخه وي او عام خلک یې نشي هضمولای. دا حقیقت دی چې زمونږ اقتصاد له ټېرو څو کلونو راهیسې ډېر خراب نتایج ورکوي. لدې څخه یې زه په اسانه وضاحت کولای شم. هغه داسې چې زمونږ د کریډټ کارت وېشلو ماشین بې له توقفه په خپل سرې ډول له څو کلونو راهیسې روان دی، چې دوه لاملونه لري، یو مصارف او بل مالي احتکار، راځئ چې دا لاملونه لږ ژور وڅېړو.
لومړی خبره خو دا ده، چې پور هېڅکله له تولید سره برابر نه وي، لکه تاسو چې له اقتصادي رسنیو څخه دا فرضیې اورئ دویمه دا چې زمونږ په اقتصاد کې د سیند په څېر روانو پورونو او تولیدي پانګونې کې ډېره بې توازني (Imbalance ) موجوده ده. غمیزه دا ده چې (فیډرل ریزرو ) ددې توازن په رامنځته کولو کې له یوې خوا پاتې راغله او بلې خوا یې خلکو ته ډاډ هم ورکړی، چې دا ډېره د ناپوهۍ پرېکړه وه.
همدا ډول مالي احتکار (Financial Speculation ) د غیر تولیدي عمل مترادف دی. څکه اصلي پانګوال تل په اوږدمهاله او پراخېدونکو ساحو کې پانګونه کوي د بېلګې په ډول د یوه تولید اخستل او هغه زېرمه کول نه یوازې د پانګوالۍ یو ډول دی؛ بلکې ددې خبرې ثبوت هم دی چې پانګوال له کومې کمپنۍ اسهام (Share ) اخستي دي، د هغې کمپنۍ په اداري باور هم لري. ددې برعکس د (محتکرین) د اوږدمهالۍ او پانګوالۍ ساحو سره هېڅ اړیکه نلري. څکه دوی غواړي چې ډېر ژر په (اسهامو ) ګټه وکړي او پرمخ لاړ شي له احتکاره ترلاسه شوې ګټه (په ځانګړي ډول که په

چې په احتکار کې ګرځي او د
ولاړه وي) غیر حقیقي شتمني ده، څکه اوس محتکرینو ته (Cowboy)
تکرینو مصارف هم زیاتوي، خو بیا هم هڅه کوي پرمخ
ي، دوی خطر او زیان په خپلو سترګو ګوري؛
شي
امریکایي اقتصاد بنسټ پردې باور ولاړ دی، چې پور اخستل
(Borrowing) هم یو اقتصادي تولیدي عمل دی؛ خو امریکایان پدې نه
وهیږي، چې دا یوازې یوه فرضیه ده او له حقیقت سره هیڅ اړیکه نلري
زمونږ اقتصادي پالیسي او د پرمختګ کچه د مصرفوونکو دا طرزالعمل
رابنایي چې خلک په انفرادي او ټولنیز ډول څه او څنګه مصرفوي.
اقتصاد زمونږ د اقتصادي ودې او قوت په بیانولو کې دوو موضوعاتو ته
اشاره کوي (سېما او پانګونه) او دا دواړه د پرمختللي اقتصادي اصلي
ننبې ښایي؛ خو امریکایان اوس پدې خبر باور نه کوي، که څه هم د
اقتصاد بنسټیز اصول نه بدلیږي؛ خو په واشنګټن کې ناست زمونږ مشران
کبدای شي فکر کوي چې دوی دا اقتصادي قوانین بدل کړي دي.

---

احتکار دې ته وایي چې د قیمتونو دلوړوالي په هیله د خلکو د ضرورت وړ مواد زخیره کړي او د سختې اړتیا او ضرورت څخه سره استفاده وکړي او هغه پر خلکو باندې په لوړ قیمت وپلورې ،او د هغه ضرر عامو خلکو ورسیږي.

## امریکایي اقتصادي کلتور:

که څوک امریکایانو ته ووایي، چې ډالرو خپل ارزښت له لاسه
ورکړی: نو خلک به ورته احمق ووایي او له هیواد سره د خیانت
شک به پرې وکړي. دا هم یوه غمیزه ده چې زمونږ اقتصاد پوهان او
پالیسي جوړونکي زمونږ په اقتصادي کلتور کې تر اوسه،

پانګونې ښخه ترلاسه شوې او پور اخستل شوې شتمنۍ تر منځ توپیر نشي کولای حتې که دوی له خپل ناسم فکر او د فضول خرڅۍ له فکري انحراف (Distraction of Consumerism) څخه خبر شي نو دې خواته هیڅ پام نه کوي. لکه مونږ چې یوه ډېر خوراک کونکي انسان ته د وزن کمولو خبره کوو.

د امریکا او نورې نړۍ په اقتصاد کې د شته واټن مسول، هغه کریډت ماشین دی، چې خلکو ته بې دریغه پورونه ورکوي زمونږ د اقتصاي پرمختګ خنډ او د ډالرو د ارزښت کمېدو لامل همدا ماشین دی، چې باید په هر حال بند شي، که داسې ونه وشي؛ نو زوال مو په برخه دی نن د چین پرمختګ زمونږ په پرتله څلور چنده دی، پداسې حال کې، چې چینایي حکومت، یو وخت سخت کمونیست او د پانګوالۍ تر ټولو سخت مخالف و؛ خو اوس چې د هغوی پرمختګ ته ګورو نو داسې فکر کیږي چې چین به په ۲۱ مې پېړۍ کې د پانګوالۍ تر ټولو ستره بېلګه وي

په۲۰۰۲ ز کال کې د چین مالي پانګونې کچه، د جي ډي پي، ۴۳ سلنه وه، په همدې کال د جي ډي پي کچه ۷،۱۰ سلنه وه چې په ورپسې کال کې ۱،۱۱ سلنې ته لوړه شوه او اوس نږدې ۱۲ سلنې ته رسېدلې ده. دا په نړۍ کې د ودې تر ټولو لوړه کچه ده. چې امریکایي ودې څلور برابره کیږي، لدې توپیر څخه تاسو د امریکا د (سوپر پاور) اقتصاد ښه مالومات کولای شئ. زمونږ جي ډي پي له ۳ـ ۴ ښودل کیږي او په دې کې هم مبالغه کیږي، ځکه زمونږ اصلي وده لدې هم کمه ده.

امریکایي رسنیو کې په عام ډول زمونږ جي ډي پي له درېو څخه تر څلورو پورې ښودل کیږي، خو له مطالعې ښکاري، چې پدې کې

عامه لګښتونه هم شامل شوي دي او هغه په حقیقت کې د جي ډي پي برخه نده، که دا ترې وويستل شي زمونږ جي ډي پي به له يونيم څخه تر دوو پورې پاتې شي، چې د چين د ۱۲ جي ډي پي پر وړاندې هيڅ هم نده. پردې سربېره په وډانيز سکتور کې ارزښتونه راغورځيږي، په مالي ادارو کې خنډونه ډېريږي او د واردتو لړۍ مخ پر خوړ ده. آيا تاسو دې ته پر مختللی اقتصاد ويلای شئ؟ فکر نه کوم.

د پوروڼو پوکانۍ (حباب):

د امريکا نوموتې اقتصادي وده په بهرنيو پوروڼو ولاړ ده، زما په فکر امريکايي اقتصاد ته د پوروڼو پوکانۍ ويل مناسبه ده، همدا حقيقت مهشور اقتصادپوه استيفين روچ، داسې بيان کړی دی:

« فيډرل ريزرو، د پوکانيو جوړونکي ماشين په څېر ده، چې د امريکا په ټولو اقتصادي او مالي ادارو کې يې د پوروڼو پوکانۍ خوشې کړي دي، لومړی د اسهامو د بازار پوکانۍ... بيا د باندونو پوکانۍ... بيا د سرپنا پوکانۍ... او په اخر کې يې د استوګنې لپاره د پور لپاسه پور (Refinancing) لويه پوکانۍ پرېښوده، چې د امريکايي مصرفوونکو عمل پرې بيا پېل شو؛ خو يوه خبره په ياد وساتئ، چې دا په ريښتيا اقتصادي وده (نمو) نده، يوازې پوروڼه دي چې زمونږ سترګې غولوي،

د پوکانۍ ډوله اقتصاد (Bubble Economy) تر شا دا حکومتي پلان و، چې د مصرفوونکو د مصارفو له لوړېدو سره به پانګونه هم زياته شي؛ خو دا زمونږ د چارواکو ناپوهي ګڼلای شو. څکه ددې مثال داسې دی، لکه ډېر خوراک چې د (پرهېز يا رژيم) لپاره ګټور وي د مصرفوونکو مصارف به تر هغه وخته روان وي، چې په جېبونو

کې یې پیسې وي، هر وخت چې دا پور بند شو، زمونږ له حکومت څخه به هم د اقتصادي ودې نشه ښکته شي.
ډالر پرلپسې خپل ارزښت له لاسه ورکوي او تر هغې به روان وي، چې تر څو مونږ خپل مصارف د خپلو عوایدو په پرتله کم نه کړو، که بهرني پانګوال په ډالرو یا (Treasury Securities) کې خپله پانګونه کمه یا بنده کړي؛ نو دا به نه یوازې امریکایي اقتصاد ته یوه سخت ټکان وي؛ بلکې له امله به یې زمونږ د پور ورکولو دا سرچینې هم وچې شي، لدې څخه به د ډالرو تر څنګ امریکایي باندونه او د اسهامو بازار هم اغېزمن شي.
په امریکا کې د بهرنۍ پانګونې ګراف له مخکې ډېر زیات لویدلی دی او مونږ اوس د داسې ژور ګرنګ پر غاړه ولاړ یو چې، که بهرنیو پانګوالو مو له پښو څخه د خپلې پانګې څادر کش کړ؛ نو د سترګو په رپ کې به دې ګرنګ ته وغورځېدلي یو. که د ډالرو ارزښت همداسې پرلپسې راټیټیږي؛ نو بهرني پانګوال اړ دي، چې خپل زېرمه کړي ډالر وپلوري او که داسې وشي، له فکر څخه یې هم زما زړه درزیږي تر اوسه به امریکایانو پدې فکر نه وي کړی، چې زمونږ د ډالرو څومره زېرمه له بهرنیو هیوادونو سره پرته ده؟ مونږ خو یوازې مصرف کوو او بس..
له بهرنیو هیوادونو سره نږدې ۲۰ ترېلیونه ډالر پراته دي، مالومات یې لدې کیږي چې زمونږ ټوله جي ډي پي نږدې ۱۴ ترېلیونه ډالر دي، یانې زمونږ له جي ډي پي څخه هم زیات ډالر له پردیو سره دي، پدې زیرمې کې اسهام (Shares) او حکومتي باندونه هم شامل دي، چې په مستیقه توګه له بهرنیو هیوادونو سره دي، دا غوښنه زېرمه زما په

فکر د ډالرو لپاره تر ټولو ستر ګواښ دي چې بالفرض په ډالرو یا امریکایي اقتصاد د بهرنیو پانګوالو باور ختم شي؛ نو ددوی لومړی غبرګون به دا وي، چې د ډالرو شته زېرمې وپلوري.. بیا به څه کیږي؟ پدې اړه له فکر څخه هم وېرېږم.
دا ۲۰ ترېلیونه ډالر اصلاً زمونږ ندي، دا په مونږ د بهرنیو هیوادونو هغه پور دی چې له شلو کلونو راهیسې یې مونږ خورو او د بېرته ورکړې په اړه یې هېڅ فکر هم نه کوو. پردې سربېره یوه حکومتي موشګافي وګورئ، چې په واشنګټن کې ناست زمونږ حکومت فکر کوي، چې د ډالرو د ارزښت له کمېدو سره به زمونږ سوداګریز کسر راکم شي؛ خو د ماضي له ټولو مشاهدو او تجربو نه ثابته شوې ده، چې داسې نه پخوا شوي وو او نه به په راتلونکي کې وشي. د سوداګریز کسر پدې پخوانۍ ناروغۍ مونږ پوهیږو، چې دا د عوایدو له کمي او د مصارفو له ډېروالي څخه رامنځته کیږي؛ خو پدې ټولو له پوهیدو سره بیا هم مونږ خپل چلند نه بدلوو او لا یې مثبت عمل ګڼو.

پر مونږ د پورونو طوفان مونږ ته پرلپسې اشارې کوي، چې باید له خطر څخه د ژغورل کېدو لپاره اړین اقدامات وکړو، ګني دا طوفان مو له ځان سره واخلي. اوس باید مونږ ومنو، چې امریکایي اقتصاد له ښودل شویو ارقامو کمزوری دی. مونږ باید دا هم ومنو چې (فیډرز ریزرو) ادارې ددې لپاره چې، د اسهامو بازار پوکانۍ له چاودېدو خطر د یو څه وخت لپاره ختم شوی دی؛ خو دا د بحران بنسټیز حل وساتي یوه بله پوکانۍ کارولې ده، چې له امله یې په ظاهره توګه دا ندی، دا بحران هر وخت د بیا پیلېدو امکان لري، مونږ ددې ستونزې

دايمي حل ته ارتيا لرو او همدا يې وخت دی، چې دې خواته پر مختتګ پيل کړو، ګنې له ډېرې بربادونکې پايلې سره به مخ شو.
اروپايي اقتصاد پوهان او پاليسي جوړونکي زمونږ سستې اقتصادي ودې او بوديجوي کسر ته ډېر پريشانه دي؛ خو د هغوی سيال امريکايان بيا پدې اړه هيڅ فکر نلري او لا هم ټينګار کوي چې امريکايي اقتصاد ډېر مساعد (flexible) او قوي دی. يانې منفي ګټې، سوداګريز کسر، بوديجوي کسر او د پورونو بحران ددوی په فکر هيڅ ستونزه نده... د امريکايي حکومت په فکر د امريکايي پورونو چاودېدونکې پوکانۍ او د مالي بحران چاودېدونکی بم، له حده تېرې ندی بلکې دا امريکا د قوي مالي نظام ثبوت دی.
پردې سربېره د انفلاسيون کچه ډېره ټيټه او د جي ډي پي کچه ډېره لوړه ښودل کيږي، زما په فکر د حکومت له دې بې پروايې او له حالته تېښتې زمونږ کمزوری اقتصاد لا هم د خطر خواته روان کړی دی تر هغې چې حکومت بنسټيز مالي بدلونونه رانه وړي هيڅ ډول اقتصادي سمون نه راځي. مونږ د لرغون پرستۍ د فکري تېروتنې ښکار يو او خپلو اقتصادپوهانو ته په تمه يو، چې زمونږ ستونزې به حل کړي؛ خو د حکومت کړنې ښايي چې دوی پدې برخه کې جدي ندي
که مونږ په ازاد بازار کې ډالر خپل ارزښت تاکلو ته پرايښي وی؛ نو ډېر مخکې به لا کوته شوی و، د ډالر د ثبات او مقاومت دوه لاملونه دي. لومړی دا چې زمونږ حکومت يې د ثبات لپاره له مصنوعي لارو چارو کار اخستی او دويم دا چې د مرکزي آسيا ډېرو لويو بانکونو په لويه پېمانه ډالر پېرلي دي، چې له امله يې موقت ثبات رامنځته

## د ډالرو مرګ

شوی دی، چین خپله کرنسي له ډالرو سره تړلې ده، دا د آسیا تر ټولو ستر اقتصادي قوت دی، لدې څخه په تقلید نورو هیوادونو هم خپله کرنسي په ډالرو پورې وتړله مونږ خوښ یو ، چې زمونږ ډالر ډېر قدر او قیمت لري؛ خو دا ټولې خوښۍ به هغه وخت په غم واوړي، چې چین او نور آسیایي هیوادونه ډالر (Float)کړي، یانې په سپین میدان یې پرېږدي

دا چې مونږ ډالر له سرو زرو څخه جلا کړل او کرنسي مو بې قدره چاپ کړه، د ډالرو دا زېږمي زمونږ اقتصاد ته یوازې موقتي قوت ورکوي، څکه دا پورونه د شګو هغه ډیري دي چې د طوفان پروخت به ښویږي او مونږ به یوازې لاسونه مروړو. همدا لامل دی چې د اروپا مرکزي بانک ددې موقتې کرنسۍ د چاپ څخه ډډه وکړه او مخالفت یې ورسره وښود ، دا بانک هم په همدې نظر دی، چې له بې زره (Godless) کرنسۍ څخه یوازې پورونه لوړیږي او امریکایي څرګنده بېلګه ده هغه خلک چې د بې زره کرنسۍ د چاپ پلویان وي هغوی د (زر لرونکې) کرنسۍ دوه ګټې له پامه غورځولې دي: لومړی دا چې قوي کرنسي زمونږ سوداګریز کسر کموي او د سیالونو په مقابل کې مو قوي کوي، دویمه دا چې زمونږ د (پېر قوت)ښه کوي

زمونږ په اوسني غیر مستحکم اقتصادي نظام کې د امریکایي مصرفوونکو د پېر د قوت Purchasing power)) تکیه یوازې په اخستي پور ده؛ خو د یوه قوي او سیال اقتصادي سیستم لپاره باید زمونږ د پېر قوت باید په یوه ریښتیني اقتصاد تیکه وکړي، نه په پورونو... څکه د پورونو تخته هر وخت د اوړېدو امکان لري، له

امریکایي ډالر سره د آسیایي کرنسۍ اوږدې اړیکې ( Lengthy Pegging ) به یوه ورځ امریکا او آسیایي هیوادونه له بحران سره مخ کوي. لامل یې دا دی، چې د آسیا زیاتره مرکزي بانکونه د پورونو او حوالو له امله یوه بل سره ژور او پېچلې معاملات لري، که یو بانک له اقتصادي بحران سره مخ کیږي؛ نو بل یې له اغېزې خان شي ژغورلای او په اخر کې به ددوی ټولو بار په امریکا لوېږي، ځکه زمونږ ډالر ددې ټولو په منځ کې مرکزي رول لوبوي.
زه پرلپسې د خپل مالي نظام په بدلون ټینګار کوم، ځکه زمونږ ټول سیال قوتونه باید په خلاص مټ خپل رول ولوبوي او د کرنسۍ اړه نړیواله پالیسي جوړه کړي دا وخت امریکا، د سوداګریز او بودیجوي کسر، پور، منفي شخصي سپماوو او تاریخي مصارفو له امله د بربادۍ تر ژۍ رارسېدلې ده، که کوم بل هیواد د دورمره پراخه بې توازنۍ ښکار وی ډېر پخوا به ډوب شوی وای؛ مګر دا د آسیایي بانکونو مهرباني ده، چې تر اوسه یې د امریکایي ډالر لاس نیولی دی په کومه ورځ چې دا بانکونه امریکایي ډالر پرېږدي؛ نو د امریکا د زوال مخه به د نړۍ یو خواک هم نشي نیولای.
که څه هم چین د امریکا په څېر ډېر پورونه اخستي دي؛ خو په امریکا او چین کې یو څرګند توپیر موجود دی، چین دا ټول پورونو په مالي پانګونې او تولیدي صنعت کې لګوي؛ مګر امریکایانو دا پورونه د خان لپاره مصرف کړي دي دا د خفګان وړ خبره ده چې مونږ ورځ تر بلې کمزوري کیږو او دا ستونزه په ملي سطحه له پامه غورځول کیږي زمونږ د جي ډي پي مهم جز، سوداګریز کسر له ۱۹۹۹ ز کال څخه تر اوسه پورې درې چنده لوړ شوی دی، یانې له

۱،۲ څخه ۲ سلنه ته رسېدلی؛ خو مونږ اقدام نه کوو. ددې برعکس په ۱۹۸۰ لسیزې کې چې سوداګریز کسر، تولیدي سکتور اغېزمن کړ، نو امریکایي اقتصادپوهانو سرونه ونیول.
د ۱۹۸۵ز کال په سپتمبر میاشت کې د خزانې وزیر (جیمز بیکر) او د جی فایو د خزانو وزیرانو یوه ناسته وکړه، پدې یې هوکړه وکړه، چې د امریکایي ډالر ارزښت راکم کړي او په پخو بنسټونو یې ودروي؛ خو په ۱۹۹۰مې لسیزې کې راغلیو پالیسي جوړونکو ددې برعکس دا پرېکړه وکړهٔ چې سوداګریز کسر د امریکایي اقتصاد او مالي نظام لپاره ډېر ګټور دی. دوی دا استدلال کاوه، چې امریکا ته د وارداتو کمی به د انفلاسیون مخه ونیسي او له امله به یې د سود کچه هم راکمه شي.
زه فکر کوم. که پدې پرېکړې کې د سود د زیاتولو اجازه ورکړل شوې وای نو دا به د امریکایانو په ګټه وه، ځکه ددې پرېکړه له امله به د هغوی د مصارفو مخه نیول شوې وه او مونږ به نن لدې بحران سره نه مخ کېدو. د امریکا د پخوانیو چارواکو پرېکړې نن زمونږ مصارف او سوداګریز کسر له واکه ویستي دي، ددې دواړو له امله امریکایي ډالر خپل ارزښت له لاسه ورکړی دي. زمونږ سوچه سوداګریزه پانګه له دویمې نړیوالې جګړې وروسته، اوس تر ټولو ټیټې سطحې ته رانښکته شوې ده، یانې جي ډي پي له ۲ ٪ څخه هم کمه ده او مالي پانګونه (Financial investment) هم د ۷ سلنې شاوخوا ده.
پدې اړه حکومت وایي، چې د دوو ټکو له مخې زمونږ د سوداګریز کسر لامل بهرني پانګوال دي، لومړی ټکی د بهرنیو پانګوالو

اضطراب او پرېشاني ده، چې زموږ معمولي امريکايي شتمني په لوړه بيه اخلي او دويم تکی کيدای شي د بهرنيو هيوادونو د اقتصادي وده کمی وي. ددې نظريې له مخې زموږ سوداګريز کسر د بهرنيو پانګونې منطقي پايله ده، ځکه بهرني پانګوال چې د خپلې پانګونې لپاره څومره ډالرو ته اړتيا لري، سمدستي يې پېري، پدې توګه زموږ ډالر د بهرنيو پانګوالو حسابونو ته انتقالېږي او زموږ د سوداګريز کسر لامل ګرځي.

د امريکايي مصرفوونکې بې ځايه مصارف او د بهرنيو توليداتو په مقابل کې د ډالرو انتقال د امريکا د عوايدو شعبې ته ډېر زيات زيان رسوي او دا زيان په ۲۰۰۲ ز کال کې ۷۶۰ ميلياردو ډالرو ته رسېدلی و، چې له ۵۰۰ ميليارده سوداګريز کسر څخه ۵۰٪ زيات دی. دا تاوان د امريکا عوايدو او ګټې ته د وژونکي زهرو په مانا دی، لدې ډېره د خفګان وړ خبره دا ده، چې ياده ستونزه په ډېرو پورونو او مصارفو هم حل نشوه.

زموږ يوه بله غټه مسله دا ده. امريکايي حکومت په اقتصادي ارقامو کې چل کوي، چې احصايوي تحريف ( Statistical Distortion ) ورته ويلای شو، ځکه اوس چې موږ د کوم بد اقتصادي حالت او بحران سره مخ يو، دا ارقام يې پر وړاندې غلي دي که موږ د پورونو د وسعت په نظر کې نيولو سره د امريکايي اقتصاد جاج واخلو؛ نو موږ به دا خبر ولږځوي چې په د امريکا په تاريخ کې انفلاسيون د لومړي ځل لپاره دومره ډېر شوی دی بله د فکر وړ خبر دا ده. چې زموږ کارپوهان او پاليسي جوړونکي تراوسه دا حالت نشي درک کولای، حتی هڅوی پدې هم لا نه

رامنخته کیږي، برعکس دا د به
پوهیږي، چې سوداګریز کسر ولې
اقتصادي ودې نښه ګڼي
په همدې ډول د اسهامو په بازار او د کورونو په نرخونو کې له حده
تېر انفلاسیون د دولت زیات عاید ګڼل کیږي له ۱۹۶۰ز کال تر
وروستیو د مرکزي بانکونو نړیوال (زر مبادله اعتبار) زېرمې نږدې
۱۰۰ ملیارده ډالره وو؛ خو په ۲۰۰۳ز کال پورې یې له ۳ تریلیونه ډالرو
څخه هم تېرې کړې دي. پدې کې دوه برخې زېرمې یوازې په ډالرو
اېښې دي بیا یې د ۲۰۰۱ او ۲۰۰۲ ز کلونو په منځ کې عمودي توپ
واچوه او په یوه کال کې، پکې نږدې ۱ تریلون ډالر زیاتوالی راغی.
څخه د چین او جاپان په شمول زیاترو آسیایي هیوادونو ډالرو پېرل
په ۲۰۰۲ ز کال کې د (فېډرل ریزرو) نوي مشر، برنانک ویلي وو:
«تاسو یې چې سوداګریز کسر ګڼئ دا په حقیقت کې کسر ندی، دا په
اروپا او آسیا کې زمونږ د سمپا شوې ګټې (Savings gluts)
مناسبه پایله ده. دا د هغو خلکو ستونزه ده چې خپل تولیدات په
مونږ پلوري او زمونږ ډالر زېرمه کوي.
ومولیدل چې د فېډرل زیرزو مشر څومره ښه توکه کړې وه؟
که د نړۍ تاریخ وګورئ د هر پرمختللي ولس ترشا به دوه شیان
وګورئ. لومړی کار او زیار او دویم له خپل ماضي څخه سبق. د زیار
له عظمت نه هیڅوک سترګې نشي پټولای؛ خو کیدای شي د ماضي
په سبق خینې خلک شک ولري زه فکر کوم هر هغه ولس چې له خپل
ماضي څخه سبق وانخلي هغه د بریا په زینه نشي ختلای اوس چې
زمونږ هیواد د کومو پېچلو ستونزو سره مخ دی، په ظاهره لدې سره
د مبارزې لپاره هیڅ لاره نه ښکاري بې روزګاري، بد اقتصادي

حالت او قیمتي.... دا ټولې هغه ستونزې دي چې د عام ولس ژوند یې سخت کړی دی. خلک پدې ستونزو کې ښکېل شوي او له انسانیت څخه یې برخې کیږي، چې له امله یې په ټولنې کې بېلابېل فسادونه رامنځته کیږي.

په تاریخ پوه خلک پوهیږي چې ۱۹۸۵ز کال د برطانیه لپاره یو سخت کال و، ټول هیواد په قیمتۍ کې ډوب و، بیې لوړې شوې وې، بې روزګاري، انفلاسیون او پرېشاني خپل حد ته رسېدلي وو. هغه وخت (مارګریټ تهیچر) د برطانیه لومړۍ وزیره وه، چې د برطانیه لومړۍ ښځینه وزیره هم وه حالت له کنټروله بهر و، پدې وخت کې د خزانې (مالیې) وزارت، له بحران څخه د وتلو لپاره یو وړاندیز وکړ چې، که حکومت د خوراکي توکو بیې دوه چنده کړي؛ نو ۸ بلیونه ډالره ترلاسه کولای شي، چې په مرسته یې حکومت له کسر څخه وتلای شي او د نویو پروژو په عملي کولو حکومتي ثبات ترلاسه کیږي؛ خو دا پلان چې تهیچر ته وړاندې شو، هغې له لوستلو پرته رد کړ.

لومړۍ وزیرې تهیچر ویلي وو «دا ټول هغه شیان دي، چې خلک یې کاروي او لدې پرته یې ژوند ناشونی دی؛ نو زه د خپل حکومت ټینګولو لپاره د ۲۰۰ ملیونو خلکو ژوند له خطره سره نشم مخ کولای» لدې وروسته کیسه لاپسې په زړه پورې ده، چې څنګه تهیچر له خپلو اقتصاد پوهانو مرسته وغوښته او هر چاته یې خپل مسولیت وسپاره، په دوی کې یو ځوان د (کریډټ کارت) وړاندیز وکړ، چې له امله یې د برطانیه اقتصاد ښه شو او حکومت خواکمن شو؛ خو

# د ډالرو مرګ

دي برعکس دلته اوس هم په هماغو ورستو او زړو پالیسیو عمل کیږي، (د خوراکي توکو نرخونه لوړ کړئ چې حکومت ګټه وکړي)، څه وخت مخکې، دا فکر هم د هر عام شوی و، چې د کورونو په بیو او د اسهامو په بازار کې راغلې تیزي امریکایانو ته له نعمت څخه کمه نده. څکه لدې امله نه یوازې امریکایان خوښي ترلاسه کولای شي بلکې په خلاص مټ خریداري هم کولای شي؛ خو په ۲۰۰۷ ز کال کې چې دا د کورونو پرکاني وچاودله؛ نو زمونږ خوښي هم ختمه شوه د امریکا کومه خزانه چې د ډالرو په شکل نورو هیوادونو ته روانه ده، دا زمونږ اقتصاد ته د خطر ترڅنګ د امریکا له سیاسي ګټو سره هم په مخالفت کې ده. پدې اړه د امریکایي اسهامو د بازار لارښوود (وارن بفټ) یوه بېلګه وړاندې کوم، چې له تېرو ۷۰ کلونو یې توله پانګونه په ډالرو او په امریکا کې دتنه کړې ده؛ خو څه وخت مخکې هغه هم په لومړي ځل په نورو کرنسیو د پانګونې کولو نیت وکړ، څکه دوی پوهیدل چې د ډالرو د ارزښت د کمي مخه اوس نه نیول کیږي؛ نو څکه یوازې په ډالرو پانګونه له تاوانه خالي نده.

وارن بفټ پدې نظر دی، چې د ډالرو زوال حتمي دی او د هیڅ شک ځای پکې نشته. لامل یې زمونږ سوداګریز او بودیجوي کسر دی، چې اوس نه اصلاح کیږي او دا چې نه اصلاح کیږي نو د ډالرو بقا څنګه ممکنه ده؟ وارن بفټ خپلو شریکانو ته یو لیک لیکلای چې په یو ځای کې یې وایي:

«دا چې په امریکا کې کسر ورځ په ورځ زیاتیږي، ددې ویره موجوده ده، چې د ډالرو ارزښت راولویږي زه په د مصنوعي سوداګرۍ پرځای د حقیقي سوداګرۍ قایل یم؛ نو څکه فکر کوم چې زمونږ

امریکایانو او بهرنیو ګټه په حقیقي سوداګرۍ کې ده. ما او زما له شریکانو سره مې دا وخت د سوداګرۍ نږدې ۵،۱ ټریلیونه ډالر پراته دي؛ خو پدې سوداګرۍ کې نه مونږ د توکو تبادله وکړه او نه د خدماتو... دا نو څنګه سوداګري ده؟».

زمونږ حکومت د خرڅلاو له لارې پیسې نه ترلاسه کوي، دوی د یوې شتمنۍ کورنۍ په حیث زمونږ د ارزښتونو ملکیت او (IOUS) ( د پور سندونه ) پلورې او پیسې ترلاسه کوي، تېر کال چې هغه د مالي بحران په اړه کومه وړاندوینه کړې وه هغه ربنتیا ثابته شو د زمونږ د داخلي پانګونې ګټه له ۱۹۱۵ز کال څخه مثبته وه او په ۲۰۰۶ز کال کې منفي شوې ده، د پانګونې په مرسته چې مونږ په نورو هیوادونو کې څومره ګټه کوو ، بهرنیان زمونږ په هیواد کې له هغې ډېره ګټه کوي، دا څنګه سوداګري ده؟ په اصل کې مونږ په بانک کې خپلې پیسې ختمې کړې او اوس مو پورونو ته مخه کړې. لکه څنګه چې یو کس پورونه واخلي او بیا یې ټول عمر په سود خلاصولو کې تېروي، بالکل په همدې ډول به امریکا په راتلونکي کې یوازې د خپلو پورونو سود خلاصوي

## خلورم فصل

# د اقتصادي تاريخ دردونکي پېښې

«تاريخ د انسان لپاره تر ټولو ښه اخطاري سيستم دی»

(نارمن کانسن)

هره کرنسي په يوه قوي او ځواکمن بنسټ رامنځته کيږي، دا عام ډالر يا پيسې (Greenbacks) چې مونږ ګرځوو، يوازې همدې ته کرنسي نه وايي، کرنسي هغه ده، چې يا خپله سره زر وي او يا شاته سره زر ولري، ډالر يوازې يو اعتباري سند (Promissory note) دی، چې پرې له ليکلي فيډرل ريزرو نوټ څخه يې ښه مالومات کيږي خکه زه وايم چې اوسني ډالر (IOUs) (I owe you) دي، که ددې تر شا سره زر موجود وای، نو په هره کچه مالي ارزښت يې لرلای شو؛ خو له بده مرغه دا چې اوس يې شا تر سره زر نشته؛ نو ارزښت هم نه لري بس فيډرل ريزرو د هرې د ډالر چاپوي، چې يوه ورځ به زمونږ مری ته راغورځيږي، خکه هغه ورځ حتمن راتلونکې ده، چې به مونږ به ددې IOUs)) بدل نه يوازې په امريکا کې خلاصوو، بلکې بهرنيو پانګوالو ته به يې هم بېرته له سود سره ورخلاصوو.

پردې سربېره زمونږ (سره زر) دوه ډوله حيثيت لري، يو دا چې هغه د سوچه شتمنی او کرنسيو د ارزښت بنسټ دی او بله دا چې د راکړې ورکړې تر څنګ پخپله د قوي پانګونې يوه وسيله ده. ددې دواړو حيثيتونو په نظر کې نيولو سره ويلای شو، چې په حقيقي مانا (سره زر) پخپله کرنسي وي؛ خو په ۱۹۷۱ ـ ۱۹۸۰ کلونو دور کې د سرو زرو

بيې ډېرې ښکته پورته کېدې او خلکو یې کاروبار ته زړه نه ښه کاوه ترڅو یې دې دوو پېښو هم ډېر مهم او کلیدي رول لوبولی دی لومړی دا چې، په ۱۹۷۱ز کال کې د امریکا ولسمشر نېکسن امریکایي ډالر د سرو زرو له ارزښت څخه جلا کړل، ددې کار اصلي موخه دا وه، چې اوس مونږ د خپلې خوښې او غوښتنې له مخې هر څومره ډالرو چې وغواړو، چاپ کولای یې شو او هیڅ پابندي نلرو. دویمه دا چې په ۱۹۷۴ز کال کې هغه بندیز ختم شو، چې ولسمشر جیرالډ فورډ له تېرو څلوېښتو کلونو په امریکایانو د سرو پر ساتلو لګولای و.

د ۱۹۳۰ز کال د لوی بحران له امله په سرو زرو کې هم سخت بحران راغلی و، چې امله یې امریکایي حکومت په دولتي بانکونو کې بېړنی حالت اعلان کړ، وروسته یې بیا ددې حالت له منځه وړلو لپاره په ۱۹۳۳ز کال کې د (ایمرجنسي ریلیف پیکج) قانون پاس کړ. پدې قانون کې په امریکایي اوسېدونکو پابندي ولګېده، چې سره زر له ځان سره نشي ساتلی او کومو خلکو چې سره یا سکې لرلې هغوی ته لارښوونه وشوه، چې د فیډرل ریزرو په نوټونو یې بدلې کړي، د سرغړونې په صورت کې لس کاله بند او لس زره ډالر جریمه سزا اعلان شوه ددې غیرمعمولي اقدام موخه یوازې همدا وه، چې عام اوسېدونکي له سره زرو ساتلو څخه لاس واخلي، ځکه د سرو زرو په بحران د لاس بري یوازینی لار دا وه چې غیرقانوني اعلان شي؛ خو دا چې د اضطراري واک په دوران کې زیاتره حکومتي پرېکړې بې نیمګړتیاوو نه وي؛ نو پدې قانون کې هم یوه پېچلتیا رامنځته شوې وه، چې وروسته بیا د ډالرو د ارزښت د کمېدو لامل شوه.

ولسمشر نېکسن چې له سرو زرو څخه کرنسي بېله کړه او
جيرالډفورډ چې د سرزرو په مالکيت بنديز ولګاوه؛ نو ورسره د سرو
زرو بيې هم ډېرې لوړې شوې، څکه تقاضا يې ډېره زياته شوه
۱۹۷۴ز کال کې د سرو زرو په ملکيت بنديز ختم شو. شپږ کاله
وروسته په ۱۹۸۰ز کال کې د سرو زرو د يوه اونس بيه له ۳۵ څخه
۸۰۰ ډالرو ته ختلې وه؛ خو بيا په ۱۹۹۹ز کال کې بېرته ۲۵۳ ډالرو ته
راټيټه شوه پدې ټولې موضوع کې مونږ يوازې د سرو زرو د بيو
تفاوت ته نه ګورو؛ بلکې د فکر وړ خبره دا ده چې، په قيمتونو کې
زياتی او کمی په تېرو څلويښتو کلونو کې د حکومتي مداخلې له
امله راروان دی او دويمه دا چې د سرو زرو او کرنسۍ اړيکه هم ددې
عمل تر شا کار کوي، اوس د يوه اونس سرو زرو بيه له ۱۱۰۰ ډالرو
څخه هم لوړه شوې ده او د ډېرې قوي پانګونې حيثيت يې خپل کړی،
چې زما په فکر، تر شا يې څلور لاملونه دي

**لومړی لامل: سوداګريز کسر:**

د امريکا سوداګريزه ګټه (surplus) اوس يوه پخوانۍ کيسه ده، دا
ګټه په خطرناک سوداګريز کسر بدله شوې ده، له ۱۹۷۷ کال
راپدېخوا سوداګريز کسر کومه طبيعي پېښه ده او که تر شا يې کوم
لامل شته؟ زما په فکر ددې تر شا يوازې يو لامل کيدای شي او هغه
دا چې کله ولسمشر نېکسن له سرو زرو څخه د کرنسۍ د جلا کولو
پرېکړه وکړه؛ له هماغه وخته زمونږ سوداګريزه ګټه په سوداګريز
کسر اوښتې ده لدې پرېکړې مخکې کلونه کلونه مونږ په ګټې کې
وو؛ خو کله چې دا پرېکړه وشوه، څو کاله وروسته ترې د امريکا

سوداګریزه ګټه په سوداګریز کسر واوښته، ددې همدا یو څرګند لامل ښکاري، چې له پرېکړې وروسته (فيډرل ریزرو ) اداره د کرنسۍ د چاپ په برخه کې ازاده شوه، دې ادارې دومره ډېر ډالر چاپ کړل چې د ډالرو ارزښت یې هم راټیټ کړ او په لومړي ځل یې په امریکا انفلاسیون رامنځته کړ، لدې وروسته د IOUS شمېر زیاتېده او مونږ په پرلپسې ډول پور توکي پېرودل

اوس کرنسي د سرو ارزښت نلري، امریکا اوس د هغې جوارګر په څېر ده، چې جوارې بایلي او د-لوبې کولو لپاره له خلکو پور اخلي، په همدې ډول زمونږ ډالر چاپ کیږي او ورسره سوداګریز کسر ورځ تر بلې زیاتیږي، ددې له امله انفلاسیون رامنځته کیږي، د ډالرو ارزښت کمیږي او د سرو زرو قیمتونه پورته روان دي دا یو ساده اقتصادي اصل دی، چې کرنسي څومره ګرځي ارزښت یې هومره کمیږي

**دویم لامل: بودیجوي کسر:**

حکومت چې دا دومره لګښتونه کوي، پیسې یې له کوم ځایه راوړي؟ ښکاره خبره ده، چې دا پیسې پور اخستل کیږي زمونږ د یو ترلیون ډالرو بودیجوي کسر اصلي بنسټ د سود لوړه کچه ده او دا د فيډرل ریزرو ادارې د اقتصادي او مالي پالیسۍ اصلي عنصر دی؛ خو پوښتنه دا ده چې، که دا د سود کچه (Interest rate) همداسې لوړیږي نو څه به کیږي؟

هر کال د کسر لرونکې بودیجې مصارف، په هیواد پورونه اضافه کوي او ورسره یې خپله بودیجه هم د یوه بې باوره کیفیت ښکار

کې په دا سود کړېده، پردې سربېره يوه پوښتنه داده چې په راتلونکې کې به دا سود څوک خلاصوي؟ څکه په هره کچه چې پوروونه زياتيږي په هماغه کچه ورسره د سود هم لوړيږي، دا پدې مانا ده، چې څومره د سود کچه زياتيږي په هماغه کچه به (ماليه ورکوونکي) اغېزمنوي، څکه که حکومت پېسو ته اړتيا پېدا کوي؛ نو په ولس به ماليات وضع کوي او دا ولس موږ، تاسو او زموږ راتلونکې نسل دی.

## دريم لامل: محدوده عرضه

د کرنسي برعکس د سرو زرو عرضه او دوران ډېر محدود وي؛ خو ولمشر نيکسن چې د ډالرو ارزښت له سرو زرو څخه جلا کړ؛ نو له هغه وخته (فيډرل ريزرو) په ډالر چاپ کولو کې پوره واک لري او تر څو چې دا ازادي موجوده وي، تر هغې به دې اقتصادي تحرکاتو ته مصنوعي حرکت ورکول کيږي په هر صورت! سره زر اصلي کرنسي وي؛ خو دا چې موږ ډالر له سرو زرو جلا کړي دي نو څکه فيډرل ريزرو غواړي د کرنسي ارزښت له پامه وغورځوي او کريډټ سيستم روان وساتي. موږ بايد يوه خبره په ياد وساتو، چې د پانګونې له اړخه ډالر بې باوره او شکمن شوي دي؛ نو هر څومره چې د ډالرو ارزښت راکميږي په هماغه کچه به د سرزرو محدوده عرضه ارزښت پېدا کوي او ددې کار مخه نيول ناشوني دي

## څلورم لامل: د سرو زرو ارزښت لرونکې کرنسي

ډېر خلک په اصلي کرنسي او IOUs....I Owe you د پور په سند کې توپير نشي کولای که ستاسو اداره تاسو د مياشت په اخر کې د (د پور يو سند) درکړي نو زه باور لرم، چې تاسو به پرې خوښ نشئ،

ځکه تاسو به نغدي پیسې یا چیک غواړئ، په همدې ډول هغه ډالر چې مونږ کاروو هم یو اعتباري سند دی او تر شا یې هېڅ ډول مالي ارزښت نشته په راتلونکي کې به د بهرنیو هیوادونو مرکزي بانکونه د ډالرو په بدل کې سره زر واخلي ځکه د سره زرو اخستو خواته میلان ورځ په ورځ ډېرېږي، همدا لامل دی، چې په بازار کې د سرو ارزښت هم ورسره زیاتیږي، دا چې ارزښت به یې څومره لوړ شي له وخت سره به مالومیږي؛ خو یوه خبره ثابته ده او هغه دا، چې هرڅومره د سرو زرو ارزښت لوړیږي په هماغه کچه به ډالر راټیټیږي

## د جعلي کرنسۍ وېروونکی تاریخ:

تاریخ ثابته کړې، چې ټولو بې زره کرنسیو خپل ارزښت له لاسه ورکړی دی، له انقلاب د مخه د روسي روبل بېلګه ستاسو مخ کې ده، همدارنګه په ۱۹۲۰ز کال کې د جرمني کرنسي دومره لوېدلې وه، چې هغوی د ۵۰۰ ملیونو (مارکس) بانک نوټونو چاپ کولو ته اړ شول، ددې ترڅنګ د کاسترو له واکمنۍ مخکې د کیوبن پېسو بېلګه هم ستاسو مخې ته ده، پدې ټولو بېلګو کې بد سیاسي او اقتصادي حالت، کرنسي اغېزمنه کړې ده

اوس به دا ګورو چې کوم لاملونه به ډالر هم له داسې حالت سره مخ کړي او پدې صورت کې به تاسو څه کوئ؟ که تاسو پدې پوهیږئ چې پداسې حالاتو کې څه وکړئ نو کومه د خفګان خبره نده، ځکه تراوسه زمونږ پرخان باور دومره ندی ختم شوی لکه ځینې امریکایان چې فکر کوي د ۱۹۳۰ز کال په بحران کې شل سلنه بانکونه دېوالیه شوي وو او د ټول عمر سپماوې ۱۵ سلنه له منځه تللې وې؛ خو د روز ویلیټ بهرنیو اقداماتو بېرته د امریکایانو باور پرځای کړی و؛ نو

اوسنی امریکایي نظام هم باید هغه اقدامات وکړي چې په ۱۹۳۰ز کال کې شوي وو.

**د ضعیفه کرنسۍ په اړه خطرناک حقایق:**

امریکا چې کرنسي له سرو زرو جلا کړه؛ نو هغه وخت فکر کېده چې دا اقدام به اقتصاد کې سمون راولي، څکه د ټولو ستونزو د حل یوازینی لار همدا ده. ولسمشر نېکسن معاشونه او خوراکي توکي هم ددې مربوط کړل او بیا یې پخپله خوښه د ډالرو چاپ پیل کړ، له بدمرغه ځینو نورو هیوادونو هم له امریکا څخه پیروي وکړه او د کرنسۍ ارزښت یې له ډالرو څخه پیل کړ، همدا لامل دی، چې نن نړیوال اقتصادي نظام د ضعیفې کرنسۍ په نظام ( Fiat money system) ولاړ دی.

فېټ مني هغه کرنسي ته ویل کیږي چې سرو، سپینو زرو یا بل هیڅ ډول ارزښت لرونکې نه وي د واکمن په امر یوازې په سپین کاغذ پیسې چاپ کیږي او یو فرضي مالي ارزښت ورته ورکول کیږي؛ خو اوس پوښتنه دا ده، چې دا کاغذ رښتیا هم کوم مالي ارزښت او تر شا کومه مالي شتمني لري که نه؟ زیاتره کارپوهان وایي، چې تولیدي قوت، طبیعي وسایل، څمکه او نور. ددې د مالي ارزښت په توګه تاکل کیدای شي؛ خو ستونزه دا ده، چې یاد شیان د لېږد یا انتقال قابل ندي او بله دا چې د تبادلاتي نظام(System of exchange) برخه هم نده؛ نو مونږ باید دا ومنو چې دا کرنسي فرضي او غیر حقیقي وي، تر هغه وخته منل کیږي، چې خلک یا هیوادونه ورته

ارزښت قایل وي؛ خو کله چې هیواد د اقتصادي بحران ښکار شي، ددې کرنسۍ ارزښت پخپله له منځه ځي.
په امریکا کې چې، د سوداګریز او بودیجوي کسر له امله د مصرفوونکو پوروته زیاتیږي، لدې مالومیږي، چې ډالر به خپل ارزښت وبایلي او برعکس به د سرو زرو ارزښت لاپسې ډیریږي، ځکه چې د قوي ارزښت لرونکي دي.

## نوې رومي امپراتوري:

له میلاد نه ۲۰ کاله مخکې د رومي امپراتورۍ باچا (آګستین) له سرو زرو ځخه ډیره کرنسي جوړه کړه، ترې دې چې د خپلې امپراتورۍ په لیرې پرتو سیمو کې یې، د سرو زرو په شته کانونو شپه او ورځ د کیندنې کار پیل کړ. له آګستین وروسته امرینو هم ددې پیروي وکړه او د کانونو کیندل یې روان وساتل نیرو د حکومتي مصارفو د پوره کولو لپاره د کرنسۍ ارزښت راکم کړ، چې له امله یې د روم او ددوی د استعماري هیوادونو ترمنځ د سوداګریز کسر کچه ډیره شوه، د رومي باچایانو همدې پالیسۍ رومي امپراتوري له زوال سره مخ کړه.
په تاریخ کې دا ډول ډیرې بېلګې شته، له نن ځخه نږدې ۱۱۰۰ کاله مخکې چین کاغذي کرنسي رواج کړه، بیا یې ډیر زر دا لړۍ ختمه کړه، ځکه ډیرې کرنسي انفلاسیون رامنځته کړ، بیا په شپاړسمې پیړۍ کې، هسپانیا په مکسیکو کې په ډیره کچه سره زر ترلاسه کړل او د نړۍ تر ټولو شتمن هیواد شو؛ خو دوی خپل ټول سره زر د پوځ په قوي کولو مصرف کړل تر دې چې پوروړي شول او له امله یې قوي پوځ او ډیره شتمني دواړه له منځه لاړل په اتلسمې پیړۍ کې فرانسه

هم له همدې حالاتو تېره شوه، دوی هم بې دریغه کاغذي کرنسي چاپ کړه او له امله یې بنا پسته ډېر انفلاسیون رامنځته شو.
د امریکا ولسمشر ابراهام لنکن هم د (لیګل ټینډر ایکټ) قانون له مخې په امریکا کې د کاغذي کرنسی د چاپ اجازه ورکړه، پدې ورځو کې تصادفاً په امریکا کورنی جګړې پیل شوې، چې د مصارفو پوره کولو لپاره پورونه واخستل شول، دا لړۍ تر ۱۹۱۳ ز کال پورې روانه وه، چې وروسته بیا د (فیډرل ریزرو ) اداره رامنځته شوه په شلمې پېړۍ کې هم ددې ډول مالي لوېدنو ډېرې بېلګې موجودې دي د ۱۹۲۰ز کال په وروستیو کې په جرمني جنګي مصارف راغلل، د لګښتونو پوره کولو لپاره یې کاغذي کرنسي چاپ کړه، چې له امله یې اقتصاد برباد شو.
۱۹۳۴ز کال کې امریکا هم همدغه طرز العمل خپل کړ او ولسمشر روز ویلټ د ۱۹۳۰ کال د بحران له منځه وړلو هڅه وکړه، د یوه اونس سرو زرو بیه ۳۵ ډالره وټاکل شوه، وروسته بیا ولسمشر نېکسن او جیرالډفورډ ډالر له سرو زرو څخه جلا کړل او له ویلټ پاتې کمی یې پوره کړ. ددې پرېکړې منفي اغېزې په ټولې نړۍ وشوې او په سروزرو پانګونه یې لا ډېره په زړه راښکونکې کړه له تاریخ څخه مونږ دا سبق زده کړی دی چې، که د هیواد کرنسي د سرو زرو لرونکې وي؛ نو اقتصاد به یې قوي او پرمختللی وي او چې د سرو زرو معیار یې پرې اېښی نو اقتصاد یې هم خراب شوی دی.
پردې سربېره له تاریخي مطالعې یو بل حقیقت هم راڅرګند شوی دی، چې هر هیواد سرو زرو له معیار پرته کرنسي چاپ کړې؛ نو په ډېرش کالو کې دننه یې اقتصاد له منځه تللی دی، که د همدې

فورمول په نظر کې نیولو سره د ولسمشر نیکسن له دورې ۱۹۷۱ څخه راپدېخوا وګورو نو دېرش کاله په ۲۰۰۱ ز کال کې پوره کیږي، دا خومره د حیرانتیا خبره ده، چې په ۲۰۰۱ز کال کې نه یوازې د امریکا اقتصاد بحران سره مخ شوې بلکې له همدې کال راپدېخو د سرو زرو بیې پورته رواني دي

نو د امریکا د مصنوعي خوبنې دېرش کاله پای ته رسېدلي دي... !

د سرو زرو ارزښت لرونکې کرنسي سیاسیون، تولواک، آمرین، اور ژبي رهبران او جمهوریت غوښتونکي منظم مصرف ته اړباسي، پردې سربېره د سرو زرو ارزښت منونکي هیوادونه د خپلو وسایلو په کچه لګښن کوي، یانې له خپل څادر سره پښې غځوي؛ خو کله چې کوم هیواد د سرو زرو معیار پرېږدي او فیټ مني سیستم خپل کړي؛ نو ناسم اقتصادي حالت یې منطقي پایله وي

تاریخ دا هم ثابته کړې چې هر هیواد نامحدوده کرنسي چاپ کړې، له همدې برخلیک سره مخ شوې له بده مرغه متخصص اقتصادپوهان چې تر څو ددې ناورغي تشخیص کوي؛ نو اوبه سره اوښتې وي، څکه هغه وخت ټول اقتصادي سیستم له دننه وروست شوی وي او سمدستي حل یې ناشونی وي، راځئ پدې اړه د ماضي په څو پېښو نظر واچوو؛

له میلاده شل کاله مخکې د رومي امپراتورۍ شهنشاه آګستن د شپه او ورځ کان کیندلو امر وکړ، چې خپل مصارف ترې پوره کړي، حتی رومي امپراتورۍ له خپلو وسایلو او ذخایرو څخه هم ډېره کرنسي وضع کړه، دا لړۍ تر ۲۴ کاله روانه وه، چې نیرو راغی او کرنسي یې له سرو څخه سپینو زرو ته واړوله، د رومي امپراتورۍ د ناسمې

پالیسي له امله امرینو هم د فساد موکې ترلاسه کړې او بالاخره د رومیانو ددې بې عدلۍ له امله په یوه ورخ کې توله رومي امپراتوري سقوط شوه.

نهمې پېړۍ کې چین کاغذي کرنسي اختراع کړه، چې وروسته یې بیا الوتونکې کرنسي (flying money) وبلله. خکه چې د باد کمزورې څپې به هم دا پیسې له خان سره وړلې. په لومړیو کې کاغذي پیسې د مسو د کمې موقتي حل لاره وګڼل شوه؛ خو وروسته بیا دا له واکه ووتله او انفلاسیون یې رامخته کړ. په هغو ورځو کې چې چین دا تجربه کوله د نړۍ مشهور سیلانی مارکوپولو هم په چین کې و. دې چې په لومړي خل کاغذي پیسې ولیدې حېران شو او چې اروپا ته ستنېده؛ نو دا پیسې یې له خان سره یوورې. هلته یوازې څو کسانو دا د چین اصلي پیسې وګڼلې او نورو پرې د جعلي کاغذ ګومان کاوه. وروسته بیا مارکوپولو د چین د کاغذي پیسو په اړه په خپلې سفرنامې یا یونلیک کې داسې ولیکل:

«دا د کاغذ توته چې چینایي حکومت راویستلې. بیخي د سرو او سپینو په حیث ده. پردې سربېره د کاغذ پر هرې توتې د والي نوم او مهر هم چاپ شوی وي. دا سور رنګه مهر د خاقان له خوا د ګومارل شوي مامور وي، چې له مهر وروسته کرنسي مستنده کېږي او د جعلي پیسو چاپوونکي ته د مرګ سزا ټاکل شوې ده»

د چین لدې پرېکړې څو سوه کاله وروسته اروپا هم د کاغذي پیسو د چاپ اراده وکړه. هسپانیا چې له مکسیکو څخه د بر سره زر ترلاسه کړي وو، په ۱۵ز پېړه کې یې د خپل بدنام قانون ( د وېنا بندیز ) Spanish inquisition له امله تبه مزې وکړې، پردې سربېره د برې

ښمني له امله د استعمار نیولو شوق هم پیدا کړ، چې امله یې هسپانیا لومړی پوروړی او وروسته دیوالیه شوه.

په اتلسمې پېړۍ کې د فرانسې باچا (جان لان) هم د کاغذي کرنسۍ د چاپ تابیا وکړه او دا سیستم یې له کاغذ څخه د زرو جوړولو راز ونوماوه. د فرانسې همدا پرېکړه وروسته بیا د اوسني کاغذي کرنسۍ د نظام لامل شوه، د فرانسې د بې عدله نظام او له خپل واک څخه د باچا د تیري له امله د فرانسې د سکو نظام ( Coining system) ډېر کمزوری شو. مالومات یې لدې کیږي چې په وروستیو ۱۴ کلونو کې له راټولو شویو مالیاتو څخه ۱۲ ملیارده لیور (livers) زیات مصرف شوي وو، جان لا د سوداګریزو ستونزو حل په همدې کې لیده، چې په ډېره کچه کاغذي کرنسي چاپ کړي

په ۱۷۱۷ز کال کې جان لا یو پلان اعلان کړ چې، له مخې یې شخصي بانکونو سره د کرنسۍ د چاپ، پر بحري سوداګرۍ انحصار او د فرانسې له نوې استوګنځي (لوزیانا) څخه د مالیې ترلاسه کولو ځانګړي امتیازاتو وعدې وشوې؛ خو تر ۱۷۲۰ز پورې دا هڅه هم ناکامه شوه او تردې وخته کاغذي کرنسۍ ۹۰ سلنه ارزښت له لاسه ورکړی و، په ۱۷۲۹ کال کې د فرانسې باچا جان لا مړ شو او فرانسویانو یې په قبر دا کتبه ولګوله

«دلته د خپل دور هغه مشهور او نابغه ریاضي پوه پروت دی، چې د خپلو ځانګړیو (الجبري) اصولو په مرسته یې خوشاله او شتمنه فرانسه، په یوه غریب او بیوزله کلي بدله کړې وه.»

تر ۱۷۲۴ز کال پورې امریکا هم د بې ارزښته کاغذي پیسو تر بار لاندې ګرځېدله. امریکایي حکومت دا پیسې د فرانسې او هند د

جګړې پر مهال چاپ کړې وې؛ خو ددې ډېر زيات خپراوي په امريکا کې مالي بحران رامنځته کړ، پدې دور کې برطانيه په خپلو ټولو استعماري سيمو کې د کاغذ پېسو په چاپ بنديز ولګاوه؛ خو د امريکا په انقلابي جګړې کې، کانګريس نه يوازې ددې پېسو د چاپ اجازه ورکړه؛ بلکې دا وعده يې هم وکړه چې حکومت ته به د خپلو زېرمه کړو سرو زرو يوه برخه ورکړي، وعدې هغه چې وفا پرې وشي.... داسې هيڅ هم ونه شول او د امريکا اقتصادي نظام لا پسې خراب شو. بيا په ۱۷۱۳ز کال کې د مالېې وزير رابرټ مورس نوي بانکنوټونه رامنځته کړل چې ددې له نوم سره نسبت ورکول شو او د (موريس نوټس) په نوم ونومول شول، دې پېسو هم د مالي ملاتړ نه لرلو له امله په لږ وخت کې خپل ارزښت له لاسه ورکړ.

په ۱۸ز پېړۍ کې، چې فرانسې ته جان لا کوم فريب ورکړ لدې څخه هم فرانسويانو عبرت وانخست، ځکه په ۱۷۹۱ز کې يو ځل بيا فرانسوي حکومت د کاغذي بانکنوټونو د چاپ کولو اراده وکړه، د امرينو پروړاندې يې اقدامات وکړل، له هغوی څخه يې ځمکې او جايدادونه واخستل او هغه پېسې يې ورکړې چې حکومت بې له کوم مالي ملاتړ څخه چاپ کړې وې؛ خو لدې سره هم د فرانسې اقتصادي حالت لاپسې پېچلی کېده او يوازې په څلورو کلونو کې د انفلاسيون سحطه ۱۳۰۰۰ سلنه زياته شوه، د حکومت د ځينو مالي اسنادو ارزښت خو له صفر څخه هم کم شوی و، پدې توګه فرانسه يو ځل بيا د مالي بحران ښکار شوه.

په ۱۹ او ۲۰مو ز پېړيو کې لکه چې ارجنټاين له اروپايي هيوادونو عبرت اخستی و، چې په ۱۸۵۳ز کال کې يې خپله کرنسي د سرو زرو

په معيار پورې وتړله، چې له امله يې اقتصاد تر يوې پېړۍ پورې ډېر ښه روان و؛ خو په ۱۹۴۳ز کال کې جان پيرن د هيواد سياسي واک ترلاسه کړ او د سياسي نظام ترڅنګ يې د هيواد اقتصاد هم برباد کړ، جان پيرن کرنسي د سرو زرو له معياره جلا کړه او په کاغذ چاپ يې پيل کړ، چې له امله يې د سرو زرو کانونه ختم شول او د ارجنټاين اقتصاد، چې تر دې دمه ښه روان و اوس له بحران سره مخ شو.

په ۱۹مې پېړۍ کې امريکا د کورنيو جګړو د مصارفو پوره کولو لپاره ولسمشر ابراهام لنکن د کاغذي پيسو د چاپ امر وکړ، چې له امله يې د انفلاسيون کچه ډېره لوړه شوه او ولس د حکومت پر ضد لاريونونه پيل کړ؛ خو دا سيستم تر هغې روان و، چې په ۱۹۱۳ز کال کې د (فيډرل ريزرو ) بنسټ کېښودل شو.

په ۱۹۲۳ز کال ک بايد جرمني، د لومړۍ نړيوالې جګړې د پوخې مصارفو له امله خپلو متحدينو ته تاوان ورکړی وای؛ نو هغوی هم اضافي کاغذي پيسې چاپ کړې، چې ارزښت يې له منځه لاړ، بد اقتصادي حالت نازاېزم وزېږواه او وروسته بيا د دويمې نړيوالې جګړې لامل شو.

په شلمې پېړۍ کې امريکا ځان د سرو زرو له معيار څخه جلا کړ او د فيټ مني سيستم سره وتړل شوه، دا بدلون په درېيو مرحلو کې رامنځته شو. لومړی ځل په ۱۹۳۴ز کال کې روز ويلټ د ډالرو ارزښت راکم کړ او ۳۵ ډالر في اونس يې وټاکه چې مخکې ۲۰ ډالره وو، دا بدلون يوازې ددې لپاره راوړل شوی چې د ۱۹۳۰ز کال مالي بحران ختم شي. په ۱۹۴۴ز کال کې په بريټن ووډز سيستم کې پدې هوکړه

وشوه، چې ټول هیوادونه دې خپله کرنسي د سرو زرو له معیار سره وتړي، دویم ځلي دا بدلون راغی؛ خو عملاً ډالر نړیواله کرنسي شوه او د نورو هیوادونو کرنسي د سرو زرو پرځای له ډالرو سره وتړل شوه.

پردې سربېره د بریټن ووډز سیستم د نړیوالې سوداګرۍ د اسانتیا لپاره د پراخو او اوږدمهالو پورونه دروازې هم پرانستې، یانې د سرو زرو له ذخایرو څخه یې هم ډېرې پیسې چاپ کړې. دریم ځل هغه وخت بدلون راغی چې، د سرو زرو خواته بدلون (Convertibility) بیخي بند شو، امریکا لا دمخه د خپلو سرو زرو څخه ډېرې پیسې چاپ کړې؛ خو ولسمشر د پیسو معیار له سرو زرو څخه بیل کړ او د بریټن ووډز تړون یې مات کړ، چې نه امله یې په نړیواله سطحه د سرو زرو د کانونو کېندل او عرضه پیل شوه.

### د بریټن ووډز سیستم:

۱۹۴۴ز کال کې، په لومړي ځل د مالي نظام چلولو لپاره د نړۍ ولسونه سره یوې هوکړې ته ورسېدل. د مالي ثبات لپاره د یوې نړیوالې کرنسۍ رامنځته کولو لپاره دا ډېره مهمه او زرینه موکه وه. د ۱۹۴۴ز کال په جولایي میاشت کې د همشپایر د بریټن ووډز نومې سیمه کې یوه ناسته وشوه، په ناستې کې د ۴۴ هیوادونو ۷۳۰ استازو ګډون کړی و، ددې تړون اصلي موخه په دویمې نړیوالې جګړې کې زیانمنو شویو هیوادونو بیارغول، پورونه ورکول او د نړیوالې کرنسۍ ثبات و. تر ۱۹۴۲ز کال پورې د همدې تړون له مخې

د بیا رغونې نړیوال بانک IBRD, World bank)) او انټرنشنل مانټري فند (IMF) ادارې رامنځته شوې
پدې ناستې کې ټولو هیوادونو پرېکړه کړې وه، چې د خپلو کرنیسو معیار به د سرو پربنسټ ودورې، هر هیواد په ټرون امضا هم کړې وه، دا سیستم تر ۲۵ کلونو پورې وچلېد؛ خو پدې ۲۵ کلونو کې د یاد ټرون پر لور هېڅ پرمختګ ونه شو او هر هیواد له خپلې خوښې سره سمه کرنسي چاپ کوله امریکا خو لا په ۱۹۷۱ز کال کې ډالر د سرو زرو له معیار څخه جلا کړي وو، چې له امله یې د امریکا د سرو زرو د پر کانونو د فشار له امله، بریټن ووډز په ټرون نه یوازې عمل ونه شو؛ بلکې دا ټرون خاورو ته وسپارل شو.
ددې ناستې یو موخه د شته شخړو او ستونزو له منځه وړل وو، چې له امله یې اقتصادي بې عدالتي رامنځته کېده، په دې غونډه کې د ډېرو هیوادونو استازي پدې پوهېدل چې اقتصادي ستونزې پخپله له جګړې څخه هم رامنځته کیږي؛ نو که په اقتصاد کې فوري اصلاحات ونشي د راتلونکیو دا ډول جګړو مخه نیول کیدای شي. تر دې وخته امریکا په ربښتیا هم له اقتصادي او پوځي پلوه د نړۍ تر ټولو خواکمن هیواد و، ځکه د امریکا په ځمکې هیڅ ډول جګړه نه وه، امریکا لدې موکې ګټه واخسته، خپل صنعت او حرفت یې قوي کړ، پخپلو اتحادي هیوادونو یې وسله وپلورله او ډېرې پیسې یې ترلاسه کړې، پدې توګه، په ۱۹۴۵ز کال کې د ۱۹۳۵ز کال په نسبت د امریکا صنعتي تولیدات دوه چنده شول.
د خپل اقتصادي برلاسي له امله امریکا په بریټن ووډز کې د رهبرۍ رول ولوبوه. د فکر وړ موضوع دا ده، چې د دې غونډې په وخت کې

امریکا د نړۍ د ټولو سرو زرو د زیرمو ۸۰ ٪ لرله، دې کار امریکا د نورو هیوادونو لپاره لاپسې مهمه کړه، امریکا دې حد ته رسېدلې وه چې د سرو زرو د معیار د ټاکلو ترڅنګ یې د نړیوالې کرنسۍ او سوداګرۍ په اړه خپلې ټولې پرېکړې په نورو هیوادونو هم ومنې، له همدې موکې څخه یې ګټه واخسته او د نړیوالې رهبرۍ امتیاز یې ترلاسه کړ.

په ټولې ۱۹مې پېړۍ کې د کرنسۍ د بدلولو معیار سره زر منل شوي وو، چې د هیوادونو ترمنځ د کرنسۍ د تبادلې قیمت یې ټاکلی و، د سرو زرو د معیار کېدو له امله یې عرضه کمه شوې وه، هغو هیوادونو چې لږ سره زر لرل، د خپلو تولیداتو او اقتصادي ودې لپاره یې پورونو ته مخه کړه، کله چې د سرو زرو معیار ټاکل شوی و هغه وخت سوداګریز کسر هم کم و؛ خو وروسته چې کرنسي د سرو زرو له معیار څخه جلا شوه، نو له هغه وخته د سوداګریز کسر کچه هم پورته روانه ده.

د برېټن ووډز له تړون وروسته ټولو هیوادونو خپله کرنسي د ډالرو په معیار پورې وتړله، چې هغه وخت د ډالرو معیار ۳۵ ډالره فی اونس سره زر ټاکل شوی و؛ خو په ۱۹۷۱ز کال کې چې ولسمشر نیکسن ډالر د سرو زرو له معیار څخه جلا کړل، له امله یې د سرو زرو یو مصنوعي معیار (Pseudo-gold standard) رامنځته شو.

په دې ناسته کې د برطانیه استازولي مشهور اقتصاد پوه (جان مینارډ) کوله، مینارډ هغه وخت د بر بنه وړاندیز وکړ، چې په نوي اقتصادي سیستم کې دې هر هیواد خپله کرنسي معیار د سرو زرو پرځای له خپلې اقتصادي ودې (Growth Rate) پورې وتړي د یوه

نړیوال بانک وړاندیز یې هم کړی و او دا یې هم ویلي وو، چې د امکان په صورت کې دې یوه نړیواله کرنسي رامنځته شي. مینارډ دا هم ویلي وو چې د کنفرانس یا ناستې موخه د اقتصادي مسایلو حل دی؛ نو مونږ باید یو ګډ معیار او قانون هم رامنځته کړو، چې ټولو ته د منلو وړ وي؛ خو له بده مرغه دا وړاندیزونه امریکایانو رد کړل دا چې امریکا په هغه وخت کې په ډېر لوړ اقتصادي مقام کې وه؛ نو د جان مینارډ د وړاندیزونو پرځای یې د خپل استازي هیري ډیکستر وایټ پلان ته ترجیح ورکړه. پدې پلان کې د ښه اقتصادي ودې پرځای، د ټوکو د بیو په لوړوالي ټینګار شوی و. په ناستې کې د (ای ایم ایف) اداري بنسټ هم کېښودل شو، چې وروسته یې بیا د جنګ ځپلو هیوادونو سره د بیارغونې مرستې وکړې او په هغوی کې د تولیدي سکټور لپاره د پور ورکولو دنده هم وروسپارل شوه. په لومړیو کې ورته ۸.۱۸ ملیارده ډالره بودیجه تخصیص شوه او هر هیواد ته د پور ترلاسه کولو لپاره یوه (کوټا) هم ورکول شوه. یانې ای ایم ایف ته د مرکزي بانک په څېر د کار کولو دنده ورکړل شوې وه؛ خو لدې وروسته چې حالات بدلېدل، د بریټن ووډز تړون هم ورسره نقص کېده.

## ډالر د کرنسیو معیار کېدل:

زیاتره اقتصاد پوهان پدې نظر دي چې، که نړۍ بېرته د سرو زرو معیار ته وګرځي؛ نو بیا به له یوه ستر بحران سره به مخ شي او کېدای شي د اوسني مالي نظام تخته هم واړوي. یوه لیکوال دا هم لیکلي، چې په برطانیه کې د ۱۹۳۰ز کال بحران له همدې ستنېدو له

رامنځته شوی و، ځینې مورخین بیا دا خبره رد کوي، دوی د بحران لامل هغه ورکړې پورونه، چې بې له سوده بهرنۍ ته ترلاسه شوې وو.
د بهرنیو وډز په څېر ستر سیستم ته د کرنسی ستنهدل نا شونې دي، ځکه نړۍ دومره چټکه پرمخ ځي، چې د شاته تګ امکان نه ښکاري؛ خو دا پدې مانا نده چې فهټ مني - بې زرو کرنسي به ښه پرمخ ځي دا کرنسي په تېر تاریخ کې هم ښه پرمخ نده تللې، تاریخ ثابته کړې، هر وخت چې حکومتونو د خپلو مصارفو لپاره ډېره کرنسي چاپ کړې، کرنسی خپل ارزښت له لاسه ورکړی.
د سرو زرو د معیار ګرځولو د رد یو دلیل د سرو زرو کمی (Rarity) دی، لکه څنګه چې مونږ د امکاناتو په نه لرلو اقتصاد نشو لوړولی، همداسې د سرو زرو په نه لرلو بې، د کرنسی معیار هم نشو ټاکلی؛ خو دا دلیل ناقص دی، ځکه په قوي اقتصادي نظام کې د هر توکي، عرضه او تقاضا کمیدای او زیاتېدای شي، لکه د توکي، تقاضا چې څومره زیاتیږي، ارزښت بې په هماغه کچه لوړیږي، د توکي د تقاضا په زیاتېدو سره بې بیې هم لوړیږي او که عرضه یې زیاته شي بیه یې ټیټیږي.
د زیاتې کرنسی مثال هم همداسې دی، چې تقاضا یې زیاته وي ارزښت به یې هم لوړیږي او چې کله یې عرضه له تقاضا څخه لوړه شي؛ نو ارزښت یې په کمېدو شي اوس امریکا هم له داسې یوه حالت سره مخ ده. که زمونږ واکمن او اقتصاد پوهان همداسې په مساهلو سترګې پټوي؛ نو د ډالرو د ارزښت کمېدو مخه به هېڅکله ونه نیول شي.

، کیدای شي له توکو سره د کرنسۍ د ټرلو سیتسم د کرنسي له ثبات سره مرسته کړې وی او د بې ځایه دولتي مصارفو مخه یې نیولې وی، که اوسني مالي نظام ته وکتل شي؛ نو فکر کیږي، چې دا بې دریغه کاغذي لوټونه به د سیستم تر سقوطه چاپ کیږي

پر کرسنۍ د پورونو فشار:

د کرسنیو په تاریخ کې په یوې کرنسۍ د پور دومره فشار ندی راغلی، لکه اوس چې پر ډالرو دی، دا هم حقیقت دی، چې تراوسه له یوې کرنسۍ څخه د هغې نړیوالتوب په سوله ایزه توګه بلې کرنسۍ ته ندی انتقال شوی اوس دا پوښتنه راولاړیږي چې، آیا د ډالرو پر ځای به یورو یا چینایي (ین) نړیواله کرنسي وګرځي؟

له شپږمې میلادي پېړۍ تراوسه یوه کرنسي هم نده نړیواله شوې له هغې مخکې رومي سکې (Solidus) دا حیثیت خپل کړې و، چې په ټولې نړۍ کې چلېده. ددې کرنسۍ نړیوالتوب تر څو پېړیو پورې روان و؛ خو وروسته یې بیا ځای دینار ونیوه او دا هم تر پېړیو پېړیو چلېده، ددې دواړو کرنسیو د نړیوالتوب دوه لاملونه وو:

لومړی دا چې د سکو فلزي مواد (Metallic content) سوچه پاتې شول او ګډون پکې ونه شو بله دا چې تر شا یې قوي اقتصادي فعالیتونه روان وو؛ خو بیا په نهمې پېړۍ کې دې دواړو سکو خپل ارزښت له لاسه ورکړ، لامل یې دا و، چې فلزي مواد یې کم شول او ګډون هم پکې وشو.

دویم ځل هغه وخت کرنسي نړیواله شوې، چې په دیارلسمې پېړۍ کې د ایټالیا په جینوا کې جینن (Genion) او فلورینس کې فلورن (florin) سکې د نړیوالې کرنسۍ په حیث رامنځته شوې دوه سوه

کاله وروسته د وینس په ډوکاتو کې نړیواله سوداګري پیل شوه، ددې سکې نړیوالتوب تر پنځلسمې پېړۍ تر هغه وخته پرځای و، چې په ډېرو اروپایي هېوادونو کې د سپین زرو کان کېندلو د فلزاتو ارزښت بدل کړ. په زړه پورې خبره دا ده چې پدې سکو کې له ګډون سره بیا هم انفلاسیون رامنځته نشو، لامل یې دا و، څومره چې د کرسنۍ عرضه زیاتېده، همدومره ورسره تولید هم زیاتېده که څه هم د هغه وخت اقتصاد د نن په نسبت ډېر کوچنی و؛ خو دا خبره پکې ارینه ده چې، که د کرنسۍ له عرضې سره تولید ډېر نشي؛ نو د کرنسۍ د تېتېدو مخه نه نیول کیږي

که مونږ اوسنی مالي نظام تلو، نو باید د پورته کرښو په نظر کې نیولو سره یې له پخوانیو مالي نظامونو سره پرتله کړو. لدې سره پدې پوهیږو، چې په پخوانیو او اوسني نظام کې کوم بنسټیز بدلونونه شته دي

تاریخ دا هم ثابته کړې، چې د کرنسیو نړیوالتوب تر یوه تاکلي وخته پورې وي او کرنسۍ وخت په وخت خپل ځای یو بل ته پرېږدي، دا چې ډالر تراوسه نړیواله کرنسي ده؛ نو زمونږ اقتصاد پوهان فکر کوي، چې دا به تلپاتې وي، دا فکر ددې نړیوال حقیقت پرضد دی چې وایي( هر عروج زوال لري)، د یورو هجم ورځ په ورځ زیاتیږي او ممکنه ده چې ډالر تر ستونې تېر کړي

**یو نوی خفګان**

امریکا په ۱۹۳۱ز کال کې د سرو زرو معیار پرېښود او د ډالرو چاپ یې پیل کړ. لدې سره ډالر په ټولې نړۍ کې خپور شو او نړیواله کرنسي وګرځېده؛ خو له هماغه وخته د ډالرو ارزښت په کمېدو دی.

ځکه امریکا چې ډالر چاپوي او له نورو هیوادونو پرې توکي پیري، دا په اصل کې له هغو هیوادونو نه په پور توکي اخلي او همدا لامل دی، چې له امله یې پر امریکا پور لس چنده زیات شوی.
زمونږ د خوراکي موادو د بیو لوړیدو لامل د ډالرو د ارزښت کمېدل دي، چې له امله یې زمونږ د پېر قوت (Purchasing power) کمیږي، څه مو چې پخوا په یو ډالر اخستل اوس یې په درې ډالره اخلو. دا په اصل کې هغه انفلاسیون دی چې د (فیټ مني سیستم - کاغذي لوټونو) د چاپ له امله رامنځته شوی او ددې پېسو تر شا هیڅ ارزښت لرونکی ملاتړ نشته
د شتمنۍ ترلاسه کولو لپاره باید کار وشي، لکه مونږ چې کار کوو او معاوضه اخلو، یا خلک په بانکونو کې پیسې ږدي او سود یې اخلي، دا چې حکومت کار نه لري؛ نو له هوا څخه پیسې ترلاسه کوي، دې ته فیټ مني سیستم - د کاغذ لوټونو چاپ وایي- یانې حکومت د خپلې اړتیا وړ پیسې چاپ کولای شي... دا مسله په لاندې پراګراف کې تشریح شوې ده:
« د یوه ډالر ترلاسه کول، چې څومره زیار غواړي، د سلو ډالرو ترلاسه کول یې د هغه سل چنده غواړي؛ خو زمونږ دولت عجبه کوي، یې له کومه زیار څخه د ورځې ملیونونه ډالر ترلاسه کوي زمونږ حکومت پر امریکایانو سربېره هغو نړیوالو سوداګرو او پانګوالو ته هم دوکه ورکوي، چې پر مونږ خپل توکي پلوري، ډالر یې ارزښت منلی، او په بانکونو کې یې ساتي.»
د امریکا (فیدرل ریزرو) ادارې په ۱۹۳۳ز کال کې اعلان وکړ، چې د ډالرو تر شا د سرو زرو ارزښت شته؛ خو په همدې کال د امریکا

ولسمشر د سرو زرو ارزښت له ۲۰ ډالره في اونس څخه ۳۵ ډالرو ته لوړ کړ، زما په فکر د درېیو مراحلو لړونکې دا پروسه یو پټ پلان و، چې د امریکا حکومت له ولس څخه پټ وساته، د همدې پلان له مخې په لومړۍ مرحلې کې امریکایي حکومت له ټول ولس نه سره زر راټول کړل، په دویمې مرحلې کې یې د سرو زرو بیه ۷۰ سلنه لوړه کړه او درېیمې مرحلې کې، د امریکا ولسشر د ډالرو د چاپ اجازه ورکړه او دعوه یې هم وکړه چې د سرو زرو ارزښت یې تر شا پروت دی کیدای شي دا دعوه تر ۱۹۳۳ کال پورې رښتیا وه؛ خو زمونږ ولسمشر چې په همدې کال د ډالرو ارزښت له سرو زرو جلا کړ؛ نو زمونږ چاپخونو د ډالرو د چاپ کولو ازادي ترلاسه کړه.

**اقتصادي سیاستونه:**

کیدای شي د ډېر خلک پدې نظر وي، چې په یوه بشپړ مالي سیستم کې، د کرنسۍ تقاضا او د پېر د قوت اړوند د ارزښت بدلون هم شامل شي. پدې توګه به شتمن ولسونه لاپسې شتمن شي، د توکو په بیه به هم واکمن وي او غریب به لاپسې غریب له پسې غریب شي. په بریټن ووډز کې د ډېرو هڅو سره بیا هم ونه وشوه، چې کرنسي په بازار کې د خپل ارزښت ټاکلو لپاره ازاده پرېښودل شي. له بریټن ووډز وروسته په وضع شوي مالي نظام کې د بې توازنۍ د کنټرول وړتیا نه وه او نه یې په فیصدۍ کې څه کمی راغی. پدې ډول د سوداګریزې ګټې په نسبت سوداګریز کسر زیات شو او د امریکا په شمول یې د نړۍ په ټولو هیوادونو منفي اغیزې وکړې.

امریکایي حکومت اوس فیټ مني سیستم د یوې وسلې په توګه کاروي، په مرسته یې داسې کارونه کوي، چې ګټه یې یوازې څه

ټوله پخپل واک کې واخسته، له هغه وخته د کرنسیو زوال پیل شوی او تراوسه یې مخه نده نیول شوې. په سوداګرۍ او صنعت کې چې، د حکومتي لاسوهنې ضد او د نظام د مرکزیت (Statism) ملاتړ فکري حرکت پیل شو؛ نو حکومت اړینه وګڼله، چې په بازاري اقتصاد د واکمنۍ او خپل رسوخ ساتلو لپاره د سرو زرو له معیار نه لاس واخلي، ځکه لدې پرته په صنعتکارو او سوداګرو نشو واکمنېدای»

پنځمه برخه

## د هيلي کاپټر تيوري، انفلاسيون او ستاسو پيسې

«امريکايي حکومت د چاپخونې په نوم يو صنعت لري، چې د سترګو په رپ کې پرې د خپلې خوښې هومره ډالر جوړولای شي» (بين برنانک)

د ۲۰۰۲ز کال د نومبر په ۲۱ نېټه، د فېډرل ريزرو مشر بين برنانک په واشنګټن کې د (نيشنل اېکانوميسټ کلب) غړو ته يوه وينا وکړه او دا وينا يې د هيلي کاپټر (چورلکې) تيورۍ په نوم مشهوره شوه. په وينا کې يې يو اقتصادي وړانديز وکړ. چې امريکا دې د جاپان په څېر د سود فيصدي راکمه کړي او ماليات کې دې په تدريجي ډول معافيتونه ورکړي. لدې سره د انفلاسيون مخه نيول کېږي او په ډېفلاسيون هم بدلېدی شي. لدې سره به، په مصرفوونکو پيسې داسې راورېږي. لکه له هيلي کاپټر (چورلکې) څخه يې چې پرې راوروي. د برنانک دا تيوري په نړۍ کې د هيلي کاپټر تيورۍ په نوم وپېژندل شوه. که څه هم ددې تيورۍ پايله انفلاسيون شو؛ خو د هغه وخت د حکومت موقتي ستونزه وه. پداسې وخت کې د ولس فکر، حکومتي فکر نه وي.

### د جاپان د تجربې له مخې:

پدې کې شک نشته، چې د جاپان له تجربو سبق اخستل، عالمانه اقدام دی او که مونږ يې په معجزه يې ونډې يو نظر تېر کړو؛ نو ډېر څه ترې زده کولای شو. پدې هم پوهيدی شو، چې زمونږ له ډالرو

سره څه روان دي: خو ددې لپاره سنجيدګي پکار ده. راځئ چې د
جاپان په تجربو يو سرسري نظر تېر کړو.
۱۹۹۷ز کال کې جاپان يوه تجربه وکړه او ترې ثابته شوه، چې د
کمزوري اقتصاد کرنسي کمزورې او د قوي اقتصاد کرنسي قوي
وي کېدای شي ډېر خلک پدې پوه شي او دا پاېله سمه وګڼي؛ خو
مونږ چې پلټنه وکړه؛ نو زياتره اقتصادپوهان دا فلسفه نه مني. د
جاپان له تجربې نه مونږ پدې پوهېږو، چې کله د يوه هېواد اقتصاد
کمزوری شي، نو د زوال لپاره بل لامل ته اړتيا نه لري
د جاپان اقتصاد کلون ښه روان و؛ خو ناڅاپه پکې سستي راغله،
لدې سستي سره د جاپان اقتصادپوهانو بوديجوي کسر ډېر زيات
وښود، چې له امله يې په ۱۹۹۷ز کال کې د جاپان په اقتصاد کې
کړکيچ راغی. په همدې کال د جاپان حکومت د کسر د کمولو لپاره
بوديجه کمه کړه؛ خو پاېله يې هماغه زړه په زړه وه. لدې کمي سره
بيا هم په راتلونکي کال کې د چاپان د اقتصادي ودې ګراف ښکته
روان و، چې له امله د جي ډي پي سربېره، توليدي قوت هم راکم شو
او انفلاسيون لاپسې لوړېده. د جاپان حکومت د ټولو هڅو سره بيا
هم اقتصادي حالت ورځ تر بلې خرابېده.
د اقتصادي عملياتو او پرمختګ اداري (OECD) په وېنا، تر
۱۹۹۹ز کال پورې په جاپان کې د ټولو اقتصادي سيستمونو
بيارغونه پېل شوه؛ خو ددې پاېلې هم شکمنې وې، خکه ډېرو
کمپنيو دعوه کوله چې خپل کاروبار يې بيا له سره رغولی دی.. خو
دا دعوې دروغ وې، البته دا هيله يې پېدا کړه، چې د جاپان په

اقتصاد کې د ښه کېدو څرګونه ښته او له خپل اوسني حالته نور نه خرابیږي

پردې سربېره د جاپان حکومتي مراعتي پکیجونه هم ناکام شول ۱۹۹۲-۱۹۹۹ز کلونو پورې جاپان، لس مراعتي پکېجونه ورکړل؛ خو پدې دوران کې د جاپان د پورونو هجم نږدې یو ټریلیون څخه تر ۱۲ بلیونو ډالرو هم واوښت. د جي ډي پي په تناسب د حکومتي پور کچه په ۱۹۹۲ز کې ۲۰ سلنه وه او په ۱۹۹۰ ز کال کې ۱۰۵ سلنې ته ورسېده د جاپان لدې حالت څخه هغه هیوادونه هم اغېزمن شول، چې پراخه سوداګري یې ورسره کوله؛ خو وروسته د جاپان حکومت د بیارغونې پلانونو د اقتصاد په رغولو کې مرسته وکړه. له بده مرغه، زمونږ حکومت دې خواته هیڅ پام نه کوي

نن د امریکا اقتصادي حالت د جاپان د ۱۹۹۰مې لسیزې حالت ته ورته دی او امریکایي اقتصادپوهان پدې سوي تفاهم کې دي، چې د امریکا اقتصاد له هغو پاېلو خوندي دی که څه هم د جاپان اقتصاد لا کمزوری دی؛ خو له اداري ارخه یې سوداګري ډېره ښه ده او جي ډي پي یې لوړېږي صادارت یې زیات دي. انفلاسیون پکې د نشت برابر دی، د اقتصاد بنسټیز څراغونه شنه دي او د سپما فیصدي لوړه ده؛ نو پدې صورت کې ویلای شو، چې د امریکا او جاپان په اقتصاد کې ډېر توپیر نشته. فکر کوم پدې اړه امریکایي اقتصادپوهان د کوم سوي تفاهم ښکار دي او یا په لوی لاس امریکایي ولس په تیاره کې ساتي

د امریکا او جاپان په اقتصادي حالت پوهېدو لپاره مونږ باید ، ددې دواړو اوسني حالتونه له ۱۹۹۰ لسیزې او ۱۹۲۹ ز کال څخه مخکې

چې جاپان د نړۍ تر ټولو ستره متناقضه (Paradox) وه. يعنې يوه ده. چې ايا په ۱۹۲۹ز کال کې اقتصادي حالت دومره خراب و. چې نه کنترول کېده او لامل يې څه و؟ ددې ځواب دا دی چې په ۱۹۲۰مې لسيزې کې ظالم. بې قانونه او بې اصوله اقتصادي او سوداګريز چاپېريال ددې بحران لامل و. اوس دويمه پوښتنه دا ده. چې په ناسمو پاليسو له عمل څخه د خلاصون لاره نه وه؟ کېدای شي نه که موږ په مالي تناظر کې د جاپان بېلګه واخلو؛ نو داسې مالومېږي چې جاپان د نړۍ تر ټولو ستره متناقضه (Paradox) و. يعنې يوه معما وه. نه د پوهېدلو او نه د پوهولو..

لامل يې دا دی چې. که موږ يې د اقتصادي اجزاو ترکيب په ترتيب سره وګورو. نو يو کمزوری اقتصاد ښکاري؛ خو که بېلابېلې اقتصادي اشارې يې وګورو هغه مثبتې دي مثلاً د ټولو صنعتي هيوادونو په پرتله په جاپان کې سود کم دی. يانې صفر ته نږدې دی؛ خو لدې سره يې بيا هم پوړونه د نورو هيوادونو په پرتله کم دي ددوی اقتصادي پاليسي او سوداګريز عوامل ډېر ښه دي، د بانګونې او سپما کچه يې لوړه ده او صادرات يې په ګټه دي؛ خو ددې برعکس پر امريکايي مصرفوونکو د پورونو بار کال په کال زياتېږي. سوداګريز کسر مخ په زياتېدو دی. بوديجه ډېرېږي او تر ټولو مهمه دا چې. ډالر ورځ تر بلې کمزوری کيږي د امريکا او جاپان له پرتلې مالومات کيږي. چې زموږ پاليسي جوړونکي د جاپان په پرتله دومره تکړه ندي. چې دعوه يې کوي ارقام ښايي چې په ټوليز ډول د جاپان اقتصاد قوي او د امريکا اقتصاد کمزوری دی

په حقایقو سترګې پټول:
برنانک د اقتصادي توازن لپاره پر انفلاسیون کنټرول اړین ګڼي؛ خو په عملي توګه ددې برعکس په داسې پالیسیو عمل کوي، چې د ډالرو ارزښت راکموي، همدا په اصل کې انفلاسیون دی چې لوړیږي او بناغلی برنانک یې د د کنټرول دعوې کوي. که موږ د فیډرل ریزرو اداري (تو پارټ اقتصادي تیوري) ته په تمه یو؛ نو پوه شو چې دا هیله هیڅکله نه پوره کیږي، ځکه دا تیوري په منطقي ډول د (لامل او پایلې) لرونکې ده. دا پدې ډول کار کوي چې، لږ انفلاسیون د کرنسۍ د چاپ او د مصرفوونکو پورنونه ډېروي، پر مصرفوونکو پورونه د پېر لامل کیږي او همدا پېر (خریداري) خوښي ده.
پر کیفیته او متعادله اقتصادي تیوري، د پورونو کچه محدودوي او له حده اوښتو ته یې نه پریږدي، یانې پر موږ پورونه (liabilities) باید زموږ له شتمنۍ څخه زیات نشي
د فیډرل ریزرو ستونزه دا ده، دوی سالم او رقابتي چاپیریال د اقتصادي ودې د اصلي او بنسټیز په توګه نه مني ، پدې چاپېریال کې د توکو تبادله کیږي او د کسر اړوند مصارف هم کنټرولیږي که د کسر اړوند مصارف له خپل حده لوړ شي نو اقتصاد له تباهۍ سره مخ کوي، بېلګه یې د جاپان ده، چې د کسر اړوند مصارف یې زیات شول او اقتصاد یې پر ځمکه پرېووت.
فیډرل ریزو د اقتصادي قوت لپاره درې سرچینې په ګوته کوي:
لومړی دا چې موږ په مالوماتي تکنالوجۍ کې د نړۍ رهبري کوو، دویمه دا چې زموږ کاروباري کلتور ازاد دی او درېیمه دا چې زموږ د مزدورۍ بازار ډېر مساعد دی دا پدې مانا ده چې هر څه بنه روان

دي؛ خو بې باوره ښکاري ځکه مونږ چې د صنعتي سکتور حقیقي کار ته ګورو نو دا ښه والې راته نه ښکاري، یوازې ګورو چې صنعتي دندې بهرنیو هیوادونو ته رواني دي او منځنۍ او ورې دندې مونږ ته پاتې کیږي د جي ډي پي اصلي پیاوړتیا په مصنوعي پیاوړتیا بدلیږي، یانې د جي ډي پي اصلي وده د مجموعي عاید او حاصل برخای په تولیزو مصارفو په کچه ښودل کیږي لدې حقایقو ښکاري، چې امریکا د تولید وړتیا له لاسه ورکوي او په بازار کې د سیالۍ وړ نه نده.

په مالوماتي ټکنالوجۍ کې زمونږ پرمختګ مشتبه اشاره ده؛ خو دا هم د فیډرل ریزرو لخوا پړسبدلې پوکانۍ ده، چې هر وخت یې د چاودنې امکان شته؛ نو مونږ باید دا حقیقت ومنو چې په دې برخې کې مو هم خپل ځای له لاسه ورکړی دی، ځکه اوس پدې برخه کې چین، هند او نور هیوادونه له مونږه یو قدم مخکې روان دي له ټکنالوجۍ سربېره نور توکي لکه بوټان، برقي وسایل او لباسونه، په چین هند او نورو ختیځو هیوادونو او لاطیني امریکا کې زمونږ په نسبت ارزان تولیدیږي، پدې صورت کې به د امریکا ګران بیه توکي به څوک واخلي؟!

په امریکا کې د حقیقي پانګوالۍ (Capitalism) ځای، جعلي پانګوالۍ نیولی دی له ۲۰۰۲ - ۲۰۰۷ ز کال پورې زمونږ د مالوماتي ټکنالوجۍ او هارډویر په برخه کې خرڅلاو، زمونږ د جي ډي پي نږدې ۲ سلنه جوړوله، چې اوس له ۱ سلنې څخه هم کم دی.

اوس زمونږ په اقتصاد کې تر ټولو مهمه اشاره (Indicator) د تولید برځای د پورونو پراختیا ده. له تېرې یوې لسیزې راهیسې

زمونږ پورونه چټک پرمخ روان دي. ددې پورونو مسولين د فيډرل ريزرو دوه مشران ګرينس پين او برنانک دي، ځکه دا پورونه د همدغو دوو ښاغلو په وخت کې اخستل شوي دی ددوی په وخت پر امريکا پورونه له ۱۲ تريليونو څخه اوښتي وو، زموږ د جي ډي پي کچه ۱۴ تريليونه او پرمونږ پورونه ۱۲ تريليونه ډالر دي، چې زمونږ په راتلونکو نسلونو به اغېزه کوي

ورکه ګټه

زما د کتاب (Financial Reckoning Day) په سريزه کې جم راجرز ليکلي: «هغه خلک چې خپله ګټه سپموي او پانګونه کوي، د هغوی اقتصاد تل وده کوي او خوښي يې په برخه وي؛ خو څوک چې داسې نه کوي، اقتصاد يې خراب وي او خپله تباه کيږي»

په سوداګرۍ کې پانګونه د خوښۍ او ارامۍ لامل دی؛ خو فيډرل ريزرو وايي، په سوداګرۍ کې د پانګوالې د کمي لامل دا دی، چې مونږ ډېر توليد کوو او له بحر پورې بازارونو کې يې تقاضا کمه ده؛ نو له دې امله پانګونه نه کيږي حقيقت دا ندی، ځکه امريکا له تېرو دوو لسيزو لدې حالته تيريږي؛ خو داسې نه وو شوي، اوس ولې داسې شول؟ کمپنيو د لږې ګټې له امله انضمام (Merging) پيل کړی و، او هيله کېده چې لدې سره به د ګټې ستونزې حل شي؛ خو دې هم ګټه ونه کړه، امريکايي کمپنۍ په تاوان يا لږې ګټې کار کوي صنعتي امريکا اوس دې ځای ته رارسېدلې، چې خپل وضع شوي اصول يې مخ ته ولاړ دي د کمپنيو انضمام هم تر هغه وخته ګټه نه کوي، چې بازار خپله قوي نه وي تر څو چې په بازارونو او فابريکو کې حقيقي پانګونه ونه شي، تر هغې اوږد مهاله اقتصادي وده

ناشونې ده او تجارتي کسر به زياتيږي په لويو سوداګريزو شرکتونو
کې تقاعد او پوررونه د همدې ستونزې اړوند دي، څکه چې پانګونه
ونشي؛ نو د مزدورانو مزدوري به له کومه پوره شي؟ ستونزه دا ده،
چې دروغ راپور ورکول د حکومت سربېره په لويو کمپنيو کې هم
رواج دي، لاندې پاراګراف وګورئ:
«ډېرې شرکتونه خپله ګټه دېره ښايي د ګټې د اعلانولو پروخت دا
شرکتونه عايد هم پکې شاملوي، چې دا بېې برخه نه وي او بايد ترې
جلا شي؛ خو (Standard and poors) کمپنۍ دا طريقه رامنځته
کړې، چې د کمپنۍ په بنستيزې يا خالصې ګټې (Core Earnings)
کې د (اجسټمنټ) په نوم ډېرې شيان شاملوي، چې وروسته بيا له
ګټې جلا کيږي دا اجسټمنټ کمې پيسې نه وي، مثلاً په ۲۰۰۲ ز کال
کې دوپونټ کمپنۍ، د قوانينو له وضعې او بيا کتنې (Audit)
وروسته، ۵ مليارده ډالره ګټه اعلان کړه؛ خو اجسمنټ چې ترې بېل
شو، نو ګټه ۳۴۷ ميلونو تاوان ته ورسېده، دا څومره غټ بدلون
دی»
سږ کال د IBM شرکت، لومړی ۷.۵ مليارده ډالر ګټه وښوده؛ خو
وروسته بيا دا ګټه ۲۸۷ مليونو ډالرو ته راښکته شوه جنرل موټرز
شرکت اول ۸.۱ مليارده ډالر ګټه اعلان کړه او وروسته مالومه شوه،
چې ۴.۲ مليارده ډالر تاوان يې کړی و. ددې دوو لويو شرکتونو
اجسټمنټ ته هم فکر وکړئ، ستي کارپ ۷.۱۳ او جنرل اليکټرانکس
۲.۱۱ مليارده ډالر اجسټمنټ ښودلی و.
د کارپوريټ ادارې په فدرالي قانون کې، اصلاحاتو يو څه مخه
نيولې شوه، لکه (Sarbanes-oxley Act) ډېر په ښه ډول کلتور

بدل کړي و؛ خو ستونزه دا ده، چې تر څو (اکاونټنګ انډسټري) یا حسابي اداري خپل ځان بدل نه کړي، کارپوریټ اداره هېڅ هم نشي کولای
پردې سربېره په حکومتي پالیسیو او د کارپوریټ په ناکامیو کې ورته والې ډېر خطرناک دي. خکه فیډرل ریزرو اداره، (سیکورټي اینډ ایکسچینج کمیسیون) ته د خواب ویلو مسوله نده او تولیدې اداري یې هم نه وایي. پر دوی د نیوکې او جریمې تصور هم نشي کیدای، لدې مالومېږي چې د پور اخستلو او دروغو وېلو لړۍ به روانه وي
په مالي او سوداګریز کسر. له ناخوښي بحث څخه ښکاري چې پدې معاملې کې لوی لوی خلک دخیل دي؛ خو فیډرل ریزرو ورته هېڅ پام نه کوي بیین برنانک هم د خپل پخواني ریس ایلن ګرینس په پل روان دی په ۲۰۰۷ زکال کې یې د کرولینیا د سوداګریزو خونو ریس (شارلټ) ته په څرګندونو کې ویلي وو، چې د فیډرل ریرزو اداري د پالیسي کمیټې، په سود کې د لنډمهالي کمي پرېکړه ولې کړې وه: «د اوسني اقتصادي ودې ګراف. له لومړۍ ربعې څخه دویمې ته په تللو کې لږ ټیټېږي او د ۲۰۰۸ ز کال تر لومړیو به په همدې حال وي»
دا پدې مانا ده، چې د ۲۰۰۸ ز کال په لومړیو کې به ښه کیږي یانې د ګرینس پین په څېر برنانک هم په تمه دی، چې په تدریج سره به د ودې ګراف بېرته خپل پخواني حالت ته راشي.
په ۱۹۸۰ مې لسیزې کې زمونږ د پور اخستلو کچه د جي ډي پي ۷۰ سلنې ته رسېدلې وه د ۱۹۹۰ مې لسیزې په پای کې دا کچه ۹۰ سلنې ته پورته شوه او بیا په ۲۰۰۲ ز کال کې همدا کچه ۹۵ سلنه شوه. دا په

اصل کې هغه زیان دی چې زمونږ اقتصاد یې کوي پدې اقتصادي حالت کې د غیر مالي سوداګرۍ ګراف هم پرلپسې غورځیږي کارپوریټ ګټه په ۱۹۸۰ مې لسیزې کې د جي ډي پي له ۱.۵ سلنې څخه نږدې ۷.۳ سلنې ته ټیټه شوې وه او اوس هم روانه ده.

زمونږ حکومت چې ورته په ډېر فخر اقتصادي خپراوی وایي، هغه مثبت نه، بلکې بې ګټې خپراوی (Profitless Expansion) دی. چې د اصولو له مخې په خپراوي یا وسعت کې نه راځي

۲ برخه

# د امریکایي پورونو تاریخ

«د زوړ پور، پرې کولو لپاره، پور اخستل د پور خلاصولو په مانا ندي» (جارج واشنګټن)

د امریکا اوسني پورونه او د کسر اړوند اوسني مصارف، زمونږ د ستونزو ظاهري حالت دی، که مونږ ددې تل ته ښکته شو؛ نو حېران به شو، ځکه مخ ته مو د حساب ورکولو داسې ورخ پرته ده چې خلاصې ترې نشته

په ۱۹۳۰ز کال کې لارډ کېنس ددې وهلو جرات کړی و چې، که په واشنګټن کې د ناستو مشرانو حالت ته وګورو؛ نو ددې پورونو د خلاصولو هېڅ اراده ورسره نه ښکاري، دوی یوازې پورونه اخلي، ستونزې حل کوي او نور غم نه کوي، اندېښنه زمونږ راتلونکي نسل ته پرېږدي، لارډ کینس نه و خبر، چې راتلونکی نسل به هم د خپلو پلرونو په پل روان وي او پدې اړه به ورسره هېڅ فکر نه وي، ثبوت یې دا دی، چې زمونږ واکمن اوس هم مونږ ته د پورونو په اړه ډاډ راکوي

د امریکا د تاریخ په لومړیو کې فکر کوم زمونږ مشرانو له برطانیې سبق اخستی و، چې په پور لویې امپراتورۍ رامنځته کیږي او پرمخ وړل کیږي د اتلسمې پېړۍ په پېل کې رابرټ پول، د برطانوي استعماري سیمو د پراختیا او پوځي مصارفو پوره کولو لپاره یو، نوی سیستم اختراع کړ. حکومت ته یې وویل چې د باندونو او د پور

د اسنادو په مرسته د عاید یوه داسې چینه بهولای شي، چې د راتلونکیو باچایانو دربارونه به هم ترې خړوب وي. حکومت دې بانډونه او د پور نور اسناد رامنځته کړي او لږه انداز سود دې پرې وضع کړي. کله چې ددې اسنادو وخت پوره شي د اصل مالي قیمت پرخای دې په سند لیکلې مقدار ورکړي او د وخت پوره شوي بانډ پرخای دې بل چاپ کړي دا یو داسې دوران دی، چې حکومت به یې تول عمر چلوي او د خپل نظام چلولو لپاره به پرلپسې پیسې هم ترلاسه کوي. د پورونو په مرسته د عاید لوړولو دا اسانه لار وه، چې برطانیه پرې خپله امپراتوري ودروله او له ۱۷۲۰ څخه تر ۱۹۴۷ز کال پورې روانه وه.
امریکا د خپل قیام په لومړیو کې له ډېرو مالي ستونزو سره مخ وه، په لومړۍ نړیوالې جګړې کې امریکا پوروړې شوې وه او تر دې وخته کومه ګډه کرنسي نه لرله. هر ایالت خپله کرنسي چلوله، چې ارزښت یې بې ثباته و. ورسره انقلاسیون د امریکایانو ملا ماته کړې وه او امریکایي رهبران پدې نه پوهېدل چې څه وکړي؟
الیګزنډر هملټن ددې تولو ستونزو د حل لپاره ښه لاره د سررابرټ والپول نسخه وګڼله خپنو امریکایي رهبرانو لدې وړاندیز سره اختلاف وکړ. لکه جیفرسن ووېل چې دا بې انصافه او غیر جمهوري عمل دی، مونږ نه غواړو چې راتلونکو نسلونه مو له زېږېدنې د مخه پوروړي وي، نه یې ددې کار په اړه نظر ورکړی او نه به ورته زمونږ دا د پور مصارف څه ګټه ورسوي د جیفرسن لدې قوي مخالفت سره بیا هم د امریکا رهبرۍ د هملټن په لار عمل وکړ او د پورونو لړۍ یې پیل کړه. چې نن زمونږ په سر لکه د غرونو ولاړ دي

په نولسمې پېړۍ کې د پورونو حجم کم و، په ۱۸۰۱ز کال کې چې جيفرسن واک ترلاسه کړ پور يوازې ۸۳ مليونه و، چې زياتره د جنګي مصارفو لپاره اخستل شوی و، ولسمشر جيفرسن د خپلې واکمنۍ په دويمې دورې کې ددې پورونو حجم ۳۷ مليونو ډالر کړ، په همدې کال يې د لوزيانا ايالات پېرلی و او ۱۵ مليونه ډالر يې پرې مصرف کړي وو. ياني د خپلې واکمنۍ په دورې کې يې پورونه ۴۶ مليونه ډالره راکم کړل او ۱۵ مليونه يې په لوزيانا ايالات هم ولګول، چې ټول ۵۱ مليونه ډالره کيږي، دا پېسې جيفرسن له ملي بوديجې پرته ورکړې وې؛ خو کله چې ورپسې بل ولسمشر واک ترلاسه کړ، له بده مرغه د ۱۸۱۲ز کال کورنۍ جګړې پېل شوې، چې له امله يې تر ۱۸۱۷ز کال پورې دا پورونه ۱۲۷ مليونه ډالرو ته وختل بيا ولسمشر جميز منز او جان کويسني هم پخپلو واکمنيو کې ددې پورونو د کمولو هڅه وکړه او په ۱۸۲۹ز کال کې يې پر امريکا پور، ۵۸ مليونو ډالرو ته راښکته کړ. وروسته بيا اندريو جيکسن د خپلې ولسمشرۍ په دورې کې دا ټول پورونه خلاص کړل، دا د امريکا په تاريخ کې لومړی او وروستی ځل و، چې پوروړې نه وه.

په ورپسې لسيزې کې امريکا بيا پور اخستل پېل کړل او تر ۱۸۴۸ز کاله ۶۳ ميليونه ډالره پوروړې شوه، پدې وخت کې دا ګټه وشوه، چې د مکسيکو په جګړې کې د امريکا پولې پراخه شوې د پيسيفک تر بحره ورسېدې، چې په کې د کاليفورنيا په شمول د جنوب لويديځ ټولې سيمې شاملې وې بيا د ولسمشر فرينکلن په دورې کې زياتره پورونه خلاص شول او يوازې ۲۸ ميليونه ډالر پاتې شول؛ خو له بده مرغه تر هغه وروسته د پورونو د کمېدو لړۍ

وشکېده او په امریکا کې د کورنیو جګړو لړۍ پېل شوه، چې پور یې سل چنده زیات، یانې ۸،۲ ملیارده ډالر شو او همداسې پسې زیاتېده.
په ۱۸۶۰ز کال کې د امریکا پور ۲ ډالره في نفر و؛ خو په ۱۸۲۵ز کال کې تر ۷۵ ډالره في نفر ته ورسېده. د جګړې په وخت کې د مالیاتو په برخه کې شوي اقدامات بېرته لغو شول او د نولمسې پېړۍ تر پایه پورونه ډېر رانښکته شوي وو، چې هجم یې یوازې ۲،۱ ملیارده ډالر وو، یانې د ۱۸۲۵ز کال په پرتله نیم پورونه پاتې شول.
بله مهمه موضوع دا ده، چې امریکا د خپل تاریخ په لومړیو ۱۱۰ کلونو کې، د خپل خپراوي لپاره وسایل برابر کړل او تر څنګ یې وخت په وخت پورونه هم راکمول او ښه خبره دا ده چې امریکا دا ټول کارونه له مالیاتي عوایدو پرته کړي وو، ځکه په ۱۸۲۹ او ۱۸۹۵ ز کلونو کې سترې محکمې مالیاتي عواید (انکم ټیکس) غیرقانوني ګڼلي وو. په شلمې پېړۍ کې د امریکا د تاریخ پاڼه اوړي او یوه بله کیسه پېل کیږي. په دې پیړۍ کې امریکایي چارواکو له ټولې امریکا څخه دا پورونو داسې جال تاو کړ، چې اوس پکې ټول ولس نښتې او که وغواړي هم ترې نشي وتلای.
د پور اقتصاد:
له لومړۍ نړیوالې جګړې تر دویمې پورې په امریکا پورونه ۲۲ میلیارده ډالره وو، وروسته یې بیا د کمولو هڅه وشو؛ په وروسته لسیزې کې د ۱۹۳۰ز کال بحران د امریکا اقتصاد تښتنه واړوله، چې له امله یې د امریکا حکومت نور پورونه واخستل، تر دې چې د فیډرل ریزرو مالي پلان دا پورونه درې چنده زیات کړل او له ۲۲ څخه

۷۲ ملیارده ډالرو ته ورسېدل بیا په دویمې نړیوالې جګړې کې لاپسې زیات شول او په ۱۹۴۵ ز کال کې د ۲۲۰ میلیارده ډالرو تر ټولې لوړې سطحې ته ورسېدل، که څه هم دا پیسې اوس کمې ښکاري؛ خو هغه وخت دا ډېرې پیسې وې
لومړۍ نړیواله جګړه په ظاهره په ۱۹۴۵ز کال کې ختمه شوه؛ خو تر شا یې د سړې جګړې یو نوی عیب پرېښود، چې له امله یې د امریکا او د هغه د حریفو قوتونو تر منځ خبره اوږده شوه. امریکا اړ شوه، چې په جګړه ایز قوت کې د اضافې لپاره دفاعي بودیجه زیاته کړي، دا پیسې یې پور واخستې، ددې پوځي مصارفو په لوړېدو ملي پور تر ۱۹۸۰ز کال پورې ۹۳۰ ملیارده ډالرو ته ورسېده د رونالډ ریګن په واکمنۍ کې ۲،۷ ترېلیونه ډالر شول او د بېل کلینټن په دوره کې بیا ددې دوه چنده یانې نږدې ۲،۵ ترېلیونه ډالر شول، بیا د بوش د دورې په پای (۲۰۰۷ز) کال کې ۹ ترېلیونه او اوس په ۲۰۱۰ ز کال کې دا پور تر ۱۲ ترېلونو لوړ شوی دی، چې دا د ۱۹۸۰ز کال په نسبت ۱۳ چنده زیات دي یانې مونږ په تېرو دوو پېړیو کې دومره پور نه و اخستی لکه په تېرو دېرشو کلونو کې مو چې اخستی او یوازې د بوش په دورې کې دا پورونه لس چنده زیات شوي دي
لدې حالته زمونږ د بد اقتصادي حالت مالومات کېږي او تر څو زمونږ جنګي ماشین په پور روان وي؛ نو زمونږ د اقتصادي ودې فکر هم ناشونی دی. څکه مونږ د افغانستان او عراق د جګړو مصارف هم پور کوو.

په هر حال پر مونږ پورونه ګړی په ګړی زیاتیږي او د حساب له مخې هره ورځ مونږ ۴،۱ ملیارده ډالر پوروړی کیږي چې په یوې دقیقې کې یو میلیون ډالر کیږي

د ۲۰۰۷ ز کال په اکتوبر میاشت کې د امریکا د خزانې وزیر هنري پالسن او د (اډمینیسټریشن اف آفس منیجمنټ اینډ بجټ) مشر، جم نسل یوه ګډه وینا وکړه:

پالسن وویل «سږ کال، د بودیجې نتایج مثبت دي او د امریکایي اقتصاد غیرمعمولي قوت ښایي، د همدې قوت له امله په امریکایي خزانې کې ریکارډ جوړونکي عواید راټول شوي دي او په بودیجوي کسر کې د پام وړ کمی راغلی دی»

جم نسل وویل « زمونږ د لنډمهالي بودیجې د ښه کېدو امکان زیاتیږی، افق ته نږدې یوه لوی خطر او بودیجوي ننګونه زمونږ په تمه ده............ یانې عامه امنیت او عامې روغتیا کې ډېر زیاتی راغلی دی؛ نو زمونږ د بچو او لمسو د خوندیتوب لپاره باید کانګریس په حرکت راشي او دا مالي موټر له سقوطه وژغوري»

قرض یا (Debit) هغو پیسو ته وایي، چې مونږ له چا څخه پور را اخستې وي او باید بېرته یې ادا کړو؛ خو کسر یا (Deficit) د بودیجې په پیسو کې هغه کمي ته وایي چې، د مصارفو د پوره کولو لپاره کفایت نه کوي د بېلګې په ډول که په کال کې زمونږ د پور حجم ۱۰ ټریلیونه ډالر وي او مونږ په کال کې له عاید څخه یو ټریلیون ډالر زیات مصرف کړو، نو مونږ یو ټریلیون ډالر کسر لرو، بیا به د کال په وروستیو کې دا کسر په پور بدل شي او داسې به زمونږ پور یو

ټریلیون ډالر زیات شي، که څه هم د پور او کسر په منځ کې دا لږ توپیر دی: خو باید پام ورته وشي.

د پور مصارفو غميزه:

لومړی ددې پورونو په اړه خلکو ډېر فکر نه کاوه، که به څوک خبر هم شول، مسله به یې له به یې له پامه غورځوله؛ خو اوس له ډېرو امریکایانو اورم چې. وایي پرموړ پورونه له حده ډېر لوړ شوي دي پدې پورونو که مونږ د (عامې روغتیا او عامه امنیت) مصارف ورزیات کړو نو مجموعي رقم به پنځه چنده شي. یانې که مونږ ۱۲ په ۵ کې ضرب کړو نو پر موږ پور ۶۰ ټریلیونه کیږي.

دا پور باید زموږ حکومت پرې کړي؛ خو د چارواکو حال ته چې ګورو لکه هیڅ مسولیت چې نه احساسوي. د پورونو دا طوفان به ډېر ژر امریکایي ولس لاهو کړي.

د کلنټن په اته کلنې دورې کې پرمونږ پورونه له ۲۵،۴۰ ټریلیونو څخه ۷۴،۵ ټریلیونه ډالرو ته پورته شوي وو او امریکایي حکومت په ډېرې سپین سترګۍ د بودیجوي مازاد (اضافه ګۍ) دعوې کولې، د هغه وخت یوه اقتصادپوه دې بودیجوي اضافه ګۍ ته د افواهي اضافه ګۍ نوم ورکړی و:

«تاسو د یوې داسې سوداګریزې کمپنۍ تصور ورکړئ، چې پرلپسې تاوانونه کوي او په پورونو کې ډوبه وي، دا اداره د خپلو مامورینو د معاشونو او امتیازاتو ورکولو لپاره په پټه خوله له بانډ بازار څخه پورونه اخلي. خپل مصارف پرې پوره کوي او ورسره له بازار څخه د خپلې کمپنۍ اسهام هم ددې لپاره اخلي، چې بیه یې لوړه شي. د کلینټن د ادارې مثال هم همداسې دی. حکومت خپل بودیجوي کسر

په بودیجي اضافه ګی بدل کړ او ددې لپاره یې له امانتي بانکې (ترسټ فنډ) څخه کار واخست، دا اضافه ګي په اصل کې پور و، چې دوارو ډلو سیاسیونو خوړلی و.
پردې سربېره د کلنټن اداري د عامې روغتیا او عامه امنیت مصارف هم د لنډمهالو پورونو په مرسته ډېر کړي وو، څکه دوی فکر کاوه چې سود به نه لوړیږي؛ خو په همدې وخت کې د کانګرس بودیجوی دفتر کچه ولګوله، چې پدې توګه به د عامې روغتیا او سوسل سیکورتي مصارف د حکومتي جي ډي پي په تناسب ۵،۷ سلنه زیات شي. دا د ۱۹۹۹ز کال کچه وه، له هغه وروسته به تر ۲۰۴۰ز کال پورې دا کچه ۷،۱۲ سلنه ته لوړه شي. له بده مرغه تر کلینټن وروسته د بوش اداري هم همدا پالیسي خپله کړه او پورونه یې لس چنده زیات کړل
د یوولسم سپتمبر له پېښې وروسته، چې په مونږ د تروریستي جګړې کوم مصیبت راغی یا راوړل شو. له امله یې زمونږ په بودیجې لا ډېر فشار راغی. ولسمشر بوش له یوې خوا په مالیاتو کې معافیتونه اعلانول او له بلې خوا یې بودیجه لوړوله، پدې هم پوهېده چې، که تر عوایدو زیاتې پېسې مصرف شي، پور کیږي
فیډرل ریزرو اداري هم د سود کمولو په مرسته د اقتصادي حالت رغولو هڅه کړې وه؛ خو پایله یې منفي وه، څکه لدې پالیسی سره د حکومت او مصرفوونکو دوارو پورونه زیات شول. چې بالاخره د پورونو بحران رامنځته شو او ولې به نه رامنځته کېده؟ د پور اقتصاد په پراختیا کې زیاتره همداسې کیږي؛ خو ددې کار لامل محرکه حکومتي طبقه. نه یوازې ددې بحران بنسټیز لاملونه او

پاېلې نه منې، بلکې اوس هم د فیډرل ریزرو ادارې د پخواني مشر ګرینس پین پدې فورمول عمل کوي چې «د مصرفوونکي زیات پېر (خریداري) د قوي اقتصاد ثبوت دی»

ایلن ګرینس د اقتصاد هغه بنسټیز اصول هېر کړي وو، چې د تولیدي او مصرفي پورونو ترمنځ توپیر څرګندوي. تولیدي پورونو هغه دي چې په صنعتي سکتور کې د لویو ماشینونو نصبولو لپاره اخستل کیږي، چې وروسته بیا صنعتي فعالیتونه او رقباتي تولید رامنځته کوي دا په امریکا کې ورځ تر بلې کمیږي پدې اړه اقتصادپوهان وایي چې، تولیدي پورونو د پرڅان بسیا او اوږمهالې اقتصادي ودې لامل کیږي، ددې برعکس مصرفي پورونه چې اوس وخت کې ورته اقتصادي بیارغونه وېل کیږي، دا یوازې د توکو په رانیولو مصرفیږي، دا مصارف په پانګونه او سپما کې کومه ګټه نه کوي او پېر (خریداري) ورسره زیاتیږي

پخوا (کنزر ویټو) په بودیجې او مصارفو کې څرګند توازن رامنځ ته کړی و، که یې نه و رامنځته کړې هم و، دعوه یې کوله؛ خو د ولسمشر ریګن حکومت کې دا بدلون تېز شو او دا فکر عام شو، چې لږ مالیه د ډېرې ګټې لامل کیږي او بوش خو ورته لا د جادویي اقتصاد(Voodoo Economic ) نوم ورکړ، دې طرز اوس د قانون شکل خپل کړی. ریګن چې واک ترلاسه کاوه؛ نو وعده یې کړې وه، چې کابینه به کموي، مصارف به راښکته کوي او بودیجه به متوازنه وي؛ خو وعده هغه وي چې پوره شي... د خپلې واکمنۍ په لومړي کال (۱۹۸۱ز) یې کانګرس ته وړاندیز وکړ، چې د دولتي او قانوني پور (Statutory debit) کچه تر یوه ټریلیونه لوړه کړي

ددې وړاندیز لامل یې د ملي اقتصاد بیارغونه ښودلې وه. دا هغه وخت و، چې زمونږ لوی پورونو ترې پېل شو او اوس ۱۲ ټریلیونه ډالرو ته رسېدلي دي څومره چې پورنونه لوړیږي همدومره ورسره د ډالرو ارزښت کمیږي د ملي پورونو په اړه د پروفیسور اباړنر اختراع کړی دا احمقانه دلیل ورکول کیږي، چې وېل یې (ملي پورونه ته مه خفه کیږئ، ځکه دا مونږ خپل ځانته خلاصوو، یانې خپلو ښاریانو ته یې خلاصوو) له داسې پالیسیو څرګندیږي چې حالت کوم خواته راون دی.

ددې بېلګه داسې ده، لکه مونږ چې مصرفوونکو ته ووایو، چې تاسو خپل کورونو ګروي کېږدئ او د خپلې خوښې پور پرې واخلئ، ځکه دا زمونږ خپله شتمني ده. پدې اړه اندېښنه مه کوئ؛ خو د کورونو هوښیار خاوندان دا هېڅکله نه راسره مني. بل دلیل دا وېل کیږي، چې تر څو زمونږ اصله شتمنتي (Assets) پرمونږ له اصل پورونه (Liabilities) څخه زیاته وي؛ نو هیڅ اندېښنه نه لرو او دا لږ پور زمونږ د شتمنیو پر وړاندې هېڅ ندی. زمونږ پراخه ځمکه. ملي پارکونه، ملي خزانې، حکومتي ودانۍ او نورې ارزښت لرونکې شتمنۍ ددې ثبوت دی، چې مونږ باید اندېښنه ونه کړو.

خو دا دلیل کمزوری دی، ځکه په تولیدي بېلانس شیټ کې د پورونو زیاتېدل یوازې یو جواز لرلای شي، که د مالي شتمنۍ او بازار ته د عرضې په برخو کې زیاتوالی راولي نو بیا سمه ده؛ که نه نو هېڅ ګټه نه لري زمونږ حکومت پدې پورونو تولیدات نه زیاتوي، یوازې مصارف ترې کوي، کیدای شي دا پورونه د خینو ډېرو بنسټیزو اړتیاو پوره کولو او یا د داسې نومونو لپاره مصرفیږي چې

اکثریت ولس یې غواړي؛ خو مونږ مخکې هم وویل چې دا پورونه تولیدي نه، مصرفي دي، چې له حده ډېر بدل یې خطر لري.
حقیقت دا دی، چې دا پورونو مونږ خپل ځان ته نه خلاصوو، زمونږ د پور ډېره برخه د نورو هیوادونو له مرکزي بانکونو څخه راغلې ده او میاشت تریلې پرلپسې زیاتیږي، نږدې راتلونکي کې به ددې پورونو زیاته برخه د هماغو بانکونو وي، ځکه هر کال پکې له ۲ – ۳ سلنه زیاتوالی راځي. د بېلګې په ډول په ۲۰۰۸ زکال کې زمونږ د ټول پور ۴۸ سلنه د بهرنیو مرکزي بانکونو وه، چې په ۲۰۰۹ ز کال کې بیا ۵۱ سلنه شوه؛ نو که دا کچه همداسې لوړیږي په راتلونکیو لسو کلونو کې به ۷۵٪ ته ورسیږي او تر ورپسې لسو کلونو به زمونږ ټول پور د بهرنیو مرکزي بانکونو وي.
زمونږ حکومتي اقتصاد پوهان حکومتي پورونه له سوداګریزو پورونو سره پرتله کوي او خوند ترې اخلي. په پور کې ډوب مشهور سوداګر (ډونلډ ټرمپ) مثال ورکول کیږي، چې څومره پور یې اخستې او پانګونه یې کړې بېرته یې ندی خلاص کړی او د قمارخانو (Casino) کاروبار یې دیوالیه دی. دا سمه ده، چې کله کله سوداګریز پورونه هم ډوبیږي؛ خو لدې سره بیا هم زه تولیدي پور ګڼور بولم ټرمپ له دیوالیه کېدو سره بیا هم خلکو ته کار پېدا کړی دی، فعالیتونه یې روان دي او زرګونه خلک ترې ګټه اخلي، لدې امله دا سوداګریز پورونه هم تولیدي پورونه ګڼلای شو، ځکه تولیدي عمل پرې روان دی.
پوروړي خلک تل غریب او پورغوښتکوي (خاوندان) تل شتمن وي. لدې متل سره هم پورتنی بېلګه ډېر اهمیت لري، ځکه نن سبا

حالت ددې برعکس دی. لامل یې دا دی، چې زیاتره لوی سوداګر غټې پورونه اخلي. دا پورونه کله له بانکونو اخستل کیږي او کله کله د باندونو، اسهامو او نورو په مرسته له منځنۍ طبقې خلکو څخه راټولیږي. دا پور ورکونکي خلک د پوروړي سوداګر په پرتله بیوزله وي؛ نو میلیادر سوداګر چې له وړو خلکو پور اخلي، په ظاهره خو دا د خلکو پوروړی دی؛ مګر د هغوی په پرتله ډېر شتمن هم وي او دا چې پور یې مصرفي نه بلکې تولیدی دی نو څکه ورته نه خفه کیږي خو حکومتي پورونه مصرفي وي، نه تولیدي؛ نو له حده ډېرېدل یې خطرناک دي. دا د پورونو تر منځ هغه توپیر دی، چې زه یې څرګندول غواړم؛ خو زمونږ نوموتي اقتصادپوهان پرې نه پوهیږي.

تر څو چې زمونږ د کانګرس غړي ددې فکري انحراف ښکار وي چې، د تولیداتو ډېره کچه د اضافي مصارفو دروازې بیرته کوي؛ تر هغې زمونږ اقتصادی ګډوډي له منځه نه ځي. پردې سربیره حکومتي پورونه په دوو دلایلو تعمیري او تولیدي نشو ګڼلای: لومړی دلیل خو مو پورته ذکر کړ چې حکومتي پانګونه هیڅ تولیدی اقدام نه کوي او دویم دا چې حکومت پخپله کومه ګټه نه کوي. حکومت پیسې له دریو لارو لاس ته راوړي: لومړی مالیات او ګمرکي محصول راټولوي دویم ډېره کرنسي چاپ کوي او دریم له یو ځای نه پور اخلي او خپل مصارف پرې پوره کوي لدې پرته حکومت کومه عایداتي سرچینه نه لري لدې ټول حالت څخه څرګنده شوه، چې حکومتي پورونه مصرفي (Consumptive) وي؛ نه تولیدي (Productive)، یانې د تاوان معامله ده.

په نولسمې پېړۍ کې د امریکا واکمنو، پورونه په ډېر دقت اخستي او له همدې امله یې بېرته وخت پر وخت پرې کول؛ خو له هغې وروسته فدرالي مالیه وضع شوه او حالت بدل شو. سترې محکمې په مناسب وخت کې پرخای پرېکړه وکړه او فدرالي مالیه یې لغوه کړه؛خو بېرته په ۱۹۱۳ز کال کې په قانوني ډول وضع شوه. له هغه وخته تراوسه زموږ کسر لرونکی مصارف زموږ د بودیجې برخه ګرځېدلې او قانوني حیثیت یې خپل کړی؛ خو زموږ اقتصادپوهان دې ادم سمیت دا اخطار نه هیروي، چې ۲۵۰ کاله پخوا یې ورکړی و:
«زموږ باچا، وزیران او چارواکي، نه د ولس د اقتصاد په اړه فکر کوي او نه خپل مصارف راکموي، څکه دوی تل د خان غم کوي؛ نه د ولس.»
موږ امریکایان که د خپلو چارواکو طرزالعمل د ادم سمیت په معقولې کې وګورو، نو پردې پوهیږو چې په امریکا ملي پورونه د امریکایي ولس په تاوان دي او چارواکو ته د یوه نعمت شکل لري
د ډالرو بربادي یو ارتقایي عمل دی:
له بده مرغه به فزیک کې د استمرار (Inertia) فورمول، ددې دور تر ټولو ستر حقیقت دی، چې په هېڅ ډول نه رد کېږي (په فزیک کې استمرار د مادې د هغې خانګړنې په مانا دی، چې هر شی پکې ساکن یا په یوه جهت په حرکت وي، تر څو چې پکې کوم بهرنی لامل مداخله ونه کړي). راځئ ددې فورمول له مخې د امریکایي اقتصاد مخ ته د پرتو خندونو جاج اخلو.

- مخ پر کمېدو بهرنی پانګونه

## ۷ برخه

# آه! د ډالرو مرګ

«د انسانیت د مزدورو طبقو غولولو لپاره، چې تراوسه خومره اختراعات شوي دي، ډالر پکې تر ټولو ډیر غولونکی دی.»

(ډینیل ویبسټر)

په نړیواله کچه، اقتصاد کې ستر بدلونونه رامنځته کیږي او ددې بدلونونو په سنګر کې امریکايي ډالر په لومړۍ کرښه کې دی، په تاریخ کې داسې ډېرې پېښې شوي چې هر څه یې بدل کړي؛ لکه تور مرګ (Black Death)* په ټوله اروپا کې د خو پېړیو لپاره د مزدورانو سخت قلت رامنځته کړ، د کرسټوفر کولمب بحري سفرونو هم سوداګریز تمایلات بدل رابدل کړل.

په همدې ډول صنعتي انقلاب، خو په اقتصاد او صنعتي میدان کې داسې بدلونونه راوړل چې اوس هم ترې اقتصادي توازن خوځیږي د صنعتي انقلاب اغېزې لا نه وې ختمې چې له یوه بل بدلون سره مخ شو او هغه له امریکا څخه چین او هند ته د اقتصادي واکمنۍ انتقال دی. هو ! امریکا به ډېر ژر د نړۍ له اقتصادي رهبرۍ څخه لاس په سر شي او ځای به یې چین، اروپا او هند په څېر صنعتي هیوادونه ونیسي.

په جغرفیايي کچه اقتصادي بدلونونه راځي، چې د استوګنځایونو کاروبار له نیویارک، شیکاګو او لاس انجلس څخه شګنهای،

بیجنګ او ممبیي ته انتقالیږي، دا پدې مانا نده چې امریکا به له منځه لاړه شي؛ خو تر پرونه چې امریکا کوم اقتصادي قوت درلود او ښوده یې، لدې وروسته به یې نور خلک ښایي. په نړیوال اقتصادي تاریخ کې داسې لوړې ژورې راځي، دا طبیعي خبره ده.
زمونږ په عاید کې هیڅ کمی ندی راغلی؛ خو د خوراکي توکو بیې ورځ تر بلې لوړیږي، زمونږ د عاید او د خوراکي توکو د بیو تر منځ بې توازني رامنځته شوې ده، چې له امله یې زمونږ د (پېر قوت) ورځ تر بلې کمیږي. د پېر قوت کمی په اصل کې د عاید د کمي په مانا دی. هغه شی چې مخکې مو په یو ډالر اخسته اوس یې په دوه ډالرو اخلو ، دا حالت پدې مانا دی، چې زمونږ عاید کمیږي او یو لامل یې د ډالرو د ارزښت کمی دی.

• څوارلمسې پېړۍ کې په اروپا کې طاعون ناروغي خپره شوه، چې له امله یې ملیونونو خلکو خپل ژوند له لاسه ورکړ، له دې امله یې تور مرګ ونوماوه.

بې ثباته ډالر او پر اقتصاد یې اغېزې
د نړۍ په هر هیواد کې اقتصادي لوړې ژورې راځي؛ خو په امریکا کې اقتصادي رسنۍ له عام ولس ډېر بد او بې انصافه چلند کوي، دوی ته حقایق نه وړاندې کیږي. امریکایان فکر کوي چې ګراني یوازې د خوراکي توکو په دوکانونو او د نفتو په پمپونو کې کې ده؛ پداسې حال کې چې ګراني په هر څه اغېزه کوي؛ خو ښکاري نه دا چې له ډالرو سره د نورو هیوادونو کرنسي تړلې ده؛ نو نور هیوادونه یې هم له اغېزه ندي خوندي، ستونزه یوازې د ډالرو ارزښت کمېده ندي؛ بلکې داسې نورې ستونزې هم رامنځته کوي:

- د ډالر په ارزښت کې کمی د ډېرو لاملونو له امله دی، لکه د فیډرل ریزرو پالیسي، د حکومت د پور ورکولو ازاده پالیسي او د سود مصنوعي کمی....
- د ارزښت د کمي له امله مونږ د خپلې اړتیا وړ توکي نشو پېرلای، ځکه(د پېر قوت) کم شوی دی.
- له بهرنیو پانګوالو سره مالونه پراته دي او هغوی یې په کمه بیه نه پلوري او دا زمونږ د انفلاسیون پاېله ده.
- بهرنیان ددې انفلاسیون لامل د ډالرو ارزښت کمېدل ګڼي او امریکایي تولیدات نه پیري
- پورونه چې امریکا ته مخه کړي؛ نو زمونږ اقتصادي نظام یې نشي جذب کولای او له امله یې اقتصادي بحران رامنځته کیږي

په کسر د ډالر اغېزه:

د انفلاسیون، روزګار، سوداګریز او بودیجوي کسر، جلا کول او څېړل سخت کار دی، ځکه دا ټول موضوعات سره تړلي وي، د بېلګې په ډول، سوداګریز کسر په نړیواله سیالۍ کې زمونږ د پېر قوت د ثابت ساتلو وړتیا اغېزمنوي؛ نو دا سوداګریز کسر اوس یوازې د امریکا ستونزه نده، بلکې په امریکایانو د نړۍ په هر ګوټ کې تاثیر لري اوس په اروپا کې زمونږ لپاره توکي ګران دي، ځکه زمونږ ډالرو ارزښت د یورو په پرتله کم دی، دا ستونزه امریکا کې هم شته؛ خو عام ولس یې لږه درک کوي

د امریکایي حکومت په راپورونو کې په انفلاسیون او د ډالرو په لوېدو کې کمی ښودل کیږي؛ خو په اصل کې مونږ ته داسې کومه اقتصادي نښه نه ښکاري چې مثبت پرمختګ ترې ثابت شي. زمونږ

سوداګریز کسر نږدې یو ټریلیون ډالرو ته رسیږي او لا هم پسې زیاتیږي. دا کسر تقریباً زمونږ د شتمنۍ یو نیم سلنه جوړوي؛ نو خکه یې امریکایان جدي نه ګڼي. سوداګریز کسر یوازې پدې مانا ندی، چې زمونږ واردات له صادراتو زیات دي، بلکې په بهر کې د امریکایي پانګوالو د ستونزو جرړه هم دد.

چین او نور صنعتي هیوادونه په چوپه خوله لګیا دي، خپل تولیدي بنسټونو قوي کوي او مونږ یې سهل ته ناست یو. چین اوس هغه چین ندی، چې یوازې بوټان، جرابې، دسمالونه او نور ارزانه توکي یې تولیدول، بلکې اوس پکې د نړۍ هر ډول ګران او ارزان تولیدات په ډېره پېمانه پیدا کیږي. په ۱۹۹۰مې لسیزې کې چین لپټاپونه نه تولیدول؛ خو په ۲۰۰۵ ز کال کې په نړۍ کې د کارېدونکو لپټاپونو پنځوس سلنه چینایي وو او اوس یې کچه تر ۷۰ سلنه هم لوړه شوې، دا په بهر کې د سوداګریز کسر یوه وړه بېلګه وه.

په امریکا کې ډېر جینز (لباس) تولیدېده؛ خو اوس یې پکې کچه صفر ته نږدې ده، خکه امریکا ته د اړتیا وړ جینز لباس له بهره راواردیږي لیوي ستراس (کمپنۍ) تقریباً خپله ۷۰٪ ماشینري چین ته انتقال کړې ده او په ټکنالوجۍ کې هم همدا حال دی، له نیوهون څخه کمپیوټر جوړونکې کمپنۍ یوه یوه هند ته ځي.

سوداګریز کسر یوازې د حساب ستونزه نده، په پورته ذکر شویو تولو بېلګو کې مونږ ته دا حقیقت ښکاره دی، چې د تولید په نړیوالې سیالۍ کې مونږ له نورو هیوادونو وروسته پاتې یو، دا زمونږ لپاره د خطر زنګ دی، زه ورته اندېښمن یم او له همدې امله

مې د کتاب نوم هم ( د ډالرو مرګ ) ایښی دي. خکه زه فکر کوم، همداسې به کیږي

د کمپنیو انتقال په روزګار اغېزه کوي؛ خو یوازې تر روزګاره محدودې نه وي، بلکې په ټولې امریکایي صنعت تاثیر کوي. د بېلګې په ډول په ۱۹۱۰ز کال کې په امریکا کې د موټر تولیدولو ۲۰۰ شرکتونو یا کمپنۍ وې، چې اوس پکې یوازې ۳ پاتې دي، نورې ټولې کمپنۍ نړیوالې شوې او له امریکا یې کډه وکړه. د امریکا اقتصادي تاریخ ډېر اغیزناک دی؛ خو زمونږ د ملي شتمنۍ د تولید بنسټ تل د زیربناوو په پانګونې ولاړ دی لکه په نولسمې پېړۍ کې د سوداګریزو مالونو د لېږد لپاره په ټولې امریکا کې د پټلۍ او نهرونو جال وغوړېده، چې وروسته په ټولې نړۍ کې د امریکا د اقتصادي واکمنۍ بنسټ شو؛ خو بیا نه پوهیږم مونږ نه څه خطا وشو، چې په شا روان یو.

په نولسمې پېړۍ کې چې امریکا د یوه نوي ملت په شکل راڅرګنده شوه؛ نو د یو شمېر کمزورو حکومتونو لرونکې د بې ثباتې ښکار هیواد و، نه یې ګډه کرنسي لرله او نه یې کومه د یادونې وړ اقتصادي پالیسي، صنعت پکې د نشت برابر و، بیا ناڅاپه امریکایي اقتصاد ته داسې ارام ورکول شو، چې تر ۱۸۸۵ز کال پورې د نړۍ تر ټولو ستر تولیدونکی هیواد شو، ترڅو چې هغه وخت د نړۍ دوه ستر اقتصادي قوتونه برطانیه او جرمني په دویم او دریم مقام کې وو، په ۱۸۸۵ز کال کې د نړۍ د ټولو توکو ۷۳ برخه یوازې په امریکا کې تولیدېدل؛ خو پوښتنه دا ده، ددې تر شا کوم لاملونه وو چې د امریکا اقتصاد یې دومره زر لوړو ته ورساوه

ددې پوښتنې د ځواب لپاره باید د نولسمې او شلمې پېړیو او د ننیو حالاتو په تو‌پیر پوه شو. په ۱۸۸۰ کال کې چې امریکا قیام وکړ، د هغه وخت د جغرافیایي او سیاسي حالاتو له مخې پکې د لوی اقتصادي قوت د جوړېدو وړتیا وه، ځکه د اقتصادي قوت یا پانګونې لپاره چې کومو وسایلو ته اړتیا وه، امریکا په ډېر مقدار لرل په هغه وخت کې د اقتصادي قوت لپاره د پنبې اړتیا وه او هغه امریکا لرله، هغه وخت پنبې د اوسنیو نفتو حیثیت درلود، تر ۱۸۶۰ز کال پورې امریکا د نړۍ ۸۰ سلنه پنبه ترلاسه کوله، همدا هغه اومه مواد وو، چې وروسته یې امریکا اقتصادي قوت وګرځاوه او په ډېره پیمانه شتمني یې پکې راټوله کړه.
کرنیز سکتور ته د طبیعي وسایلو په مرسته قوت ورکړل شوی و، چې په کالیفورنیا کې د سرو زرو له موندل کېدو وروسته یې مقدار نور هم زیات شو، ددې سرو زرو له موندلو وروسته په امریکا د خوښۍ څپه راغله په ۱۸۴۷ کال کې د امریکا د سرو زرو مقدار په کال کې ۴۳۰۰۰ اونسه وو، چې په ۱۸۵۲ز کال کې په ډېرې چټکۍ ۲۷۲۱۰۰۰ ته لوړ شو. د امریکا د پرمختګ په طبیعي وسایلو کې پنبې او سرو زرو ډېره ونډه لرله؛ خو لدې مهمه دا، چې امریکا خپله شتمني او وسایل پکار واچول او ګټه یې ترې واخسته په ټول هیواد کې یې پټلۍ خپرې کړې او د فلزاتو صنعت ته یې ښه وده ورکړه، نهرونه یې وکیندل او د پراختیا لپاره یې پراخه پانګونه وکړه.
داسې وګڼئ چې لارو او نهرونو په امریکا کې یو بل صنعتي انقلاب راوړی و؛ خو نن لږ خلک د کرنیز سکتور په اهمیت پوهیږي، څوک یې چې په حقیقي اهمیت پوهېدل هغوی ترې تللي دي.

په جي ډي پي د مخ پر ځوړ ډالر اغېزې:

جي ډي پي یانې په یوه هیواد کې له ملي شتمنۍ څخه ترلاسه کېدونکي کلني عواید... لدې امله ورته (مجموعي یا تولیز ملي عواید - Gross domestic product) وايي.

جي ډي پي یوازې په امریکا کې ستونزې نه جوړوي، د نړۍ په ګردي چینايي اقتصاد کې هم لدې امله ستونزې رامنځته کیږي له بده مرغه د چین کرنسي هم له ډالرو پورې تړلې ده، چې په ډالرو کې څه ستونزه رامنځته شي؛ نو امریکا او چین دواړه اغېزمنوي .

امریکا او چین دواړه په ډېر مقدار پور اخلي؛ خو تر منځ یې توپیر دا دی، چې د چین پور تولیدي او د امریکا مصرفي دی، چې له امله یې په امریکا کې د تولید پرځای یوازې مصارف کیږي؛ نو ځکه باید امریکا ته اوس د تولیدي هیواد پرځای مصرفي هیواد وویل شي، همدا خطرناکه خبره ده او له سره دې پرې غور وشي.

په انفلاسیون کې زیاتی او په اقتصادي سیالۍ کې کمزوري زمونږ د کمزورې جي ډي پي نښه ده، چېن د نړۍ د پرمختللي اقتصاد لرلو اراده لري او پرمخ روان دی، لدې مالومیږي چې څو کاله وروسته به امریکا له مخې لرې کړي، ځکه په امریکایي ډالر کې زور ندی پاتې.

ډالر خو ډالر دی:

مونږ چې د ډالرو په ارزښت کې د کمي خبره کوو؛ نو ځینې اقتصادپوهان یې بیخي نه مني او په ډېر فخر وايي، چې (ډالر خو ډالر دی). په بازار کې ډالر د یورو، پاونډ او نورو قوي کرنسیو په پرتله ټیټیږي، برعکس زمونږ په بازارونو کې د ورځنیو توکو بیې

لوړېږي او دا يوه منطقي خبره ده، چې کله د کرنسي ارزښت کم شي؛ نو توکي ګرانيږي

فيډرل ريزرو اداره زياته کرنسي چاپ کوي او خپروي يې، دا دومره ستره مسله نده، چې زمونږ اقتصادي ستونزې دېرې کړي، خکه دا په ټولې نړی کې کيږي اصل ستونزه زمونږ د پورونو ده، چې پرلپسې انفلاسيون رامنځته کوي

په هر صورت که د صنعتي سکتور فعاليتونه ښه وو ، په ډالر به هم مصبته اغېزه کوي او که ښه نه وي؛ نو په ډالر به يې هم اغېزه منفي وي، دا ساده خبره ده

اوس به د جرمني په اړه ولولو ، چې هټلر څنګه د جنګي مصارفو پوره کولو لپاره له مصنوعي کرنسي کار اخستی و. په ۱۹۳۵ ز کال کې هټلر، د ورسز له تړون څخه سرغړونه وکړه او غوښتل يې چې يوه قوي اردو ولري؛ خو ددې کار لپاره ډېرو پيسو ارتيا وه، چې هټلر نه لرلې، پدې اړه يې د ماليي وزير ډاکټر هيملر ته دنده وسپارله، چې د حل لاره پېدا کړي ډاکتر هيملر (IOUs) اختراع کړل، د جرمني حکومت ضمانت يې پرې ولیکه او په ټول هيواد کې يې خپاره کړل، دا د جرمني حکومت پور و ؛ خو هټلر نه په بوديجې کې شامل کړ او نه يې د دولتي بانک په راپورونو کې ثبت کړ.

د پور دې اسنادو يا IOUs ته (MEFO) وېل کېدل، چې د څلورو بېلابېلو وسلې جوړونکو شرکتونو د کنسرسيوم يا سوداګريز اتحاد (Metall-forshungsgesellshaft) مخفف و. د ۱۹۳۵-۱۹۳۸ کلونو په منځ کې دې کنسرسيوم يا سوداګريز اتحاد د ۱۲مېليياردو

ډالرو معادل MEFO وېلوډل او وسله یې پرې جوړه کړه، چې په دویمې نړیوالې جګړې کې یې وکاروله.
دلته مو دا یادونه څکه وکړه، چې امریکا هم د هټلر په پل روانه ده. IOUs چاپ کوي او په اصل کې د افغانستان او عراق د جګړو مصارف، په پور کوي.
که څه هم اقتصادي جنګ یو ډول پانګونه ده، څکه په یوه هیواد جګړه کول او د هغوی په سرچینو لاس واکمنېدو سره هم شتمني ترلاسه کېږي کیدای شي هټلر هم په همدې تمې MEFO رامنځته کړي وو، چې له جګړې ګټلو وروسته به ډېر وسایل لاس ته ورشي او هغه به دا پورونه بېرته ډېر په اسانه پرې کړي کیدای شي نازي جرمني یا المان هم په همدې فکر په راتلونکې کې د پانګونې ۱۲ میلیارده ډالر جګړې ته ورغورځولې وي؛ خو له دې جګړې څخه چې کومه ویرونکې پایله ترلاسه شوه، بیان یې اړین نه بولم
که امریکا هم همدا فکر کړی وي، نو ۸ کاله وشو، چې جګړه کېږي او امریکا ترې هېڅ ګټه ونه لیده. آیا امریکا به د خپلې جنګي پالیسۍ په برکت په اقتصاد کې له چین سره سیالي وکړي او که د جرمني په شان به له خپل لومړني حالت څخه بې برخې شي؟ ماته خو دا پالیسي ګټوره نه ښکاري.
په افغانستان او عراق کې د امریکا ستونزې:
په افغانستان او عراق، دواړو کې د امریکا پنجه کمزوری کېږي، د امریکا د بېوسۍ حال خو دا دی چې اوس په ښاغلي حامد کرزي کې هم د امریکا پرضد خبرو جرات پیدا شوی دی. تېرو ورځو کې یې په کابل کې د ملګرو ملتونو د امنیت شورا له یوه پلاوي سره په خبرو

کې ویلي وو چې « نړیوال دې په افغانستان کې جګړې لپاره مهال وېش وټاکي، ځکه جګړه ډېره وشوه او که همداسې روانه وي نو هېڅکله پای ته نه رسیږي»

ښاغلي کرزي له پلاوي څخه دا پوښتنه هم کړې وه، چې افغانستان په جګړې کې څومره خلک دخیل دي او څومره پیسې مصرفیږي لدې تولو سره، طالبان ولې قوي دي؟ ددې جګړې لړۍ له اتو کالو روانه ده او اوس افغانان پدې نه پوهیږي چې د طالبانو په شان کمزوري حرکت خپل وجود څنګه ساتلای دی؟ ځکه دا کمزوري قوت ورځ تر بلې قوي کیږي او بریدونه زیاتوي، ښاغلي کرزي دا پوښتنه هم کړې وه، چې د ناټو ټول پوځ په افغانستان کې شته دی او ټول نړیوال متحدین یې ملاتړ کوي؛ نو بیا ولې مونږ طالبان نشو ماتولای؟

کرزي زیاته کړې وه، چې د ولایتي بیارغونې ټیمونو امنیت خراب کړی او موازي حکومت یې روان کړی دي، نه پوهیږو چې پراختیایي بودیجه کوم ځای کې مصرفیږي. په یوې بلې وینا کې یې ویلي وو، چې امریکایي ځواکونو زمونږ په کلیو بمبار کوي، همدې بهرنیو ځواکونو افغانانو ته امنیتي ستونزې راولاړې کړې دي او له مونږ سره د امنیت تامینولو متبادله لار نشته

د ښاغلي کرزي له دې ویناو څخه ښکاري چې، خلک له امریکا څخه څومره زړه بدي دي. عراق کې هم همداسې حال دی، عراقیان د بهرینو ځواکونو د وتلو غوښتنه کوي؛ خو د امریکا د سیاسي فشار له امله د عراق حکومت درې کاله وخت ورکړ، دا تړون د عراق پارلمان هم توثیق کړی؛ خو عراقي ولس یې ورسره نه مني. امریکا

هسې هم نوره هلته نشي پاتې کيدای ځکه په عراق او افغانستان کې جګړې د امريکايي اقتصاد بيخ ويستی دی.
د شوروي اتحاد له ماتې وروسته امريکا د نړيوالې واکمنۍ تصور خپل کړ او فکر يې وکړ چې، که په افغانستان حمله وکړي؛ نو خپلو موخو ته رسيدای شي او د امريکايي عالم برژنسکي تصور عملي کولای شي. هغې ويلي وو چې « په افغانستان کې پنبه خونبول د يوريشا د نيولو معادل دي، چې له هغه ځايه افريقا ته تلای شي ترڅنګ يې د بحري سيمو په نيولو منځني بحر ته په اسانه لار پيدا کولای شي»
خو له بده مرغه د امريکا دا خوب رښتيا نه شو، ځکه د برژنسکي دويم نصيحت يې شاته غورځولی و، چې ويلي وو « په نړۍ د واکمنۍ فکر ښه دی؛ خو د کورنيو او بهرنيو ستونزو له امله به پر نيول شويو سيمو ګرفت کمزوری وي، ځکه د واکمنۍ ساتلو لپاره، د ارادې تر څنګ قوت او ثبات ته هم اړتيا ده. پخوا به د ټولواکۍ په دور کې دا کار شونی و؛ خو اوس ندی»
په ۲۰۰۱ز کال کې چې امريکا پر افغانستان بريد کاوه، نو روسيه يې ملاتړې وه؛ خو وروسته چې د روسيه په ګاونډيو سيمو لکه جورجيا، اوکراين او کرغيزستان کې امريکا پال انقلاب پيل شو او روسيه ته يې ستونزې راولاړې کړې؛ نو روسيه يې هم سخت مخالفت وکړ، حتی پوټين دا عمل وغنده او د نهايي اقدام کولو اخطار يې هم ورکړ. په پايله کې د وسلې قاچاقوونکي ازاد پرېښودل شول چې د ترکمنستان له لارې يې د شمالي اتحاد په

جنګي سردارانو وسله پلورله او همدا وسله بیا طالبانو ته په لاس ورغله
پدې کې هېڅ شک نشته، چې د امریکا او عراق جګړې امریکا دیوالیه کړې ده، د امریکایي اقتصاد ملا ماته ده. کلینټن چې امریکا له کوم بد حالته راویستې وه، بوش بېرته هماغه حالت ته ورټېل وهله، حالات چې دومره خراب وي نو د عراق او افغانستان جګړې به څنګه کیږی... د ګرانی، ترڅنګ د بې روزګارۍ طوفان د امریکایانو پر سر ګرځي، پدې صورت کې که امریکا جګړې غځوي ولس یې ورسره نه مني د امریکا جنګي ماشینونه ضایع کیږي، اوس یې هم مخ ته په جګړې کې د تېپي پوځیانو د درملنې او د هغوی د تقاعدونو ستونزې پرتې دي، لدې ډېره جګړه څنګه وزغمل شي
تراوسه خو یوازې د امریکا د اسهامو په بازار زلزله راروانه ده؛ خو دا یوازې تر دې به محدوده نه وي، د امریکا د نړیوالې مشرۍ دوره په ختمېدو ده، نړۍ کې د واکمنۍ توازن بدلیږي
لنډه دا چې په عراق او افغانستان کې جګړو د امریکا اقتصادي حالت بدل کړی، پوړونو پرې اوړي په امریکا کې ددې بحران د خپرېدو یو شکل دا دی، چې په اروپا کې د مالي بحران ښکار بانکونو سره اروپا د امریکا په څېر مرسته نه کوي، تر څنګ یې د اروپا یوه مرکزي مالیاتي اداره دیوالیه کېدونه ته نږدې ده. په جرمني یا المان کې د کورونو د ودانۍ لپاره د پور ورکړلو اداره د بحران ښکار ده، ددې مالي بحران بدې اغېزې کېدای شي نورو ادارو ته هم سرایت وکړي
د ډالرو د غورځېدو پاېلې:

د ۲۰۰۴ز کال په لومړیو کې د هند د مالیې وزیر اعلان کړی و، چې جنوبي کوریا که څېله سپما پانګه د ډالرو په شکل نه ږدي، دا پدې مانا ده چې امریکا ته د ډالرو د غورځېدو خطر پېل شو. د ۲۰۰۷ د اګست په میاشت کې جاپان، چین او تایوان، څپله د ډالرو زېرمه ډېره زر وپلورله، چې دا رښتیا هم د ډالرو لپاره خطر دی او ارزښت به یې هم همدومره زر کمیږي. تایوان چې د ډالرو په شکل کومه (زر مبادله) یا د پیسو ضمانت ساتلې و، د هغې ۹ برخې (shares) یې وپلورلې، چې دا یې له ۲۰۰۰ ز کال راپدیخوا تر ټولو لوی پلور و، په همدې ډول چین خپل ۲ او جاپان ۴ سلنه زېرمې وپلورلې، چې له ۲۰۰۲ ز کال راپدیخوا ددې هیوادونو تر ټولو لوی پلور و، پردې سربېره ډېر شمېر نورو هیوادونو هم د خپلې د ډالرو د زېرمو پلورل پېل کړي دي، چې له امله یې د ډالرو ارزښت ورځ تر بلې کمیږي.

د ۲۰۰۷ز کال په وروستیو څو اونیو کې د آسیایي هیوادونو بانکونو د ۵۲ ملیارده ډالرو زېرمې پلورلې وې، که څه هم دا دومره ډېرې پیسې ندي، خو داسې ښکاري، چې آسیایي بانکونو کې د ډالرو ساتلو شوق مخ په کمېدو دی. څکه د ډالرو د ارزښت کمېدو له امله دا هیوادونه زیان کوي او ددې زیان د ډکولو لپاره دوی یورو اخلي. د ۲۰۰۷ز کال په نومبر میاشت کې د امریکا د خزانې وزارت د اطلاعاتو دیپارټمنټ راپور ورکړ، چې ډالر پلورونکو هیوادونو کې د اسرایلو په څېر د امریکا نږدې دوست هیواد هم و. په ۲۰۰۷ز کال کې جاپان، کارابین بینکنګ سنټر، لوکزهامبورګ، هانګ کانګ، جنوبي کوریا، جرمني، سنګاپور، مکسیکو، سویټزرلېنډ، ترکیه، کاناډا، نیدرلېنډ، سویډن، فرانسې، روسیه، ایرلېنډ او اسرایل،

ډالر پلورلي وو. د امريکايي ډالرو تر ټولو سترو زيرمه کونکو هيوادونو چين او جاپان کې خو د ډالرو د پلورلو ليوالتيا پيدا شوي ده. ځکه ددې هيوادونو مرکزي بانکونو د بازار په ليدو دا درک کړې ده. چې د ډالرو زېرمه ګټوره نده.

په تېرو لسو کلونو کې د امريکا په صنعتي سکتور کې هېڅ ډول پرمختګ ندی شوی. نه کار زيات شوی. نه توليدات ډېر شوي او نه په ګټې کې کوم مثبت بدلون راغلی دی. په صنعتي فعاليتونو کې سستي ټول اقتصادي حالت ګډوډ کړی دی. که مونږ سوداګريز کسر، انفلاسيون او ډالرو غورځېدل نشو کنټرول کولای: نو صنعتي سکتور ته بايد پام وکړو. د توليد د زياتولو لپاره بايد خپلې نيمګړتياوې له منځه يوسو. يا به مونږ له ټولو اقتصادي قوتونو سره سخته سيالي کوو او يا به ډالر همداسې مخ په ځوړ روان وي، ځکه د ډالرو ارزښت مونږ له قسته کموو. په نړۍ د خپلې اقتصادي واکمنۍ د لاسه ورکولو ترڅنګ مونږ د خپلو ډالرو ارزښت هم له لاسه ورکړی دی.

د انفلاسيون خطرونه:

په امريکا داسې وخت هم راغي، چې انفلاسيون د نشت برابر و، خلکو باور وکړ چې، ګني انفلاسيون ختم شوی دی او ددې شاباسی يې هم فيډرل ريزرو ته ورکړ. چې دې اداري يا انفلاسيون ختم کړ او يا پرې واکمنه شوه؛ خو دا رښتيا نه وو. انفلاسيون ختم شوی نه وو، فيډرل زيرزو. چالاکي کړې وه او پټ کړی يې و. ددې اداري پاليسي داسې جوړه شوې وه چې سود او انفلاسيون يې کم ښوده او مصرفوونکي يې لا ډېر پور اخستلو ته هڅول. ددې ټولو هڅه موخه

دا وه، چې بانګوال لا ډېرې بانګونې ته وهځول شي او لدې لارې اقتصادي وده هم لوړه وښودل شي.
په ۲۰۰۲ز کال کې د فیډرل ریزرو مشر برنانک، د چینایي اقتصاد د کتنې لپاره چین ته سفر وکړ. هلته یې ولیدل چې له ۱۹۹۰ز کال راپدېخوا د چین اقتصاد ۹ سلنه وده کړې ده. له بېرته راستنېدو وروسته برنانک وویل چې د چین بانګونه او سپما ډېره اغېزناکه ده، ځکه د هغوی د بانګونې کچه یې له جي ډي پي سره مساوي یانې ۴۳ سلنه ده او ملي سپما یې ۵۲ سلنې ته رسېدلې، پداسې حال کې چې زمونږ ملي سپما صفر ده. لدې تاسو پوهېدای شئ چې د چین په پرتله زمونږ اقتصادي موقف څومره او څه ډول دی؟
د فیډرل ریزرو تاریخي ونډه:
زمونږ په اوسني اقتصادي حالت کې فیډرل ریزو مهمه ونډه لري، ځکه له تېرو ۹۷ کلونو زمونږ د اقتصادي پالونکې همدا اداره ده، دا چې امریکا یې له خوښۍ نه څنګه د خفګان دې حالت ته راورسوله لویه کیسه ده؛ خو اوس به یې په تاریخ سرسري نظر تېر کړو.
د امریکا په تاریخ کې ددې اداري فکر اول په نیویارک تایمیز کې د کلنۍ اقتصادي بیاکتنې لیکوال پال وار برګ سره پیدا شو. په ۱۹۰۷ز کال کې یې په لومړي ځل د امریکا حکومت ته وړاندیز وکړ، چې د وخت ناوخت اقتصادي او مالي مسایلو د پیدا کېدو د ډېرې او همدا ډول د بې باورۍ احساس له منځه وړلو لپاره، دې د بانکدارۍ مرکزي سیستم رامنځته کړي. دا سیستم به ټولې هغه نیمګړتیاوې کنټرولوي، چې د امریکایي اقتصاد د پرمختګ مخې ته راځي. په همدې کال د واربرګ همکار جیکب چیف هم امریکایي

حکومت متوجه کړ چې، که يې د امريکايي اقتصاد ته د متوجې ستونزو د حل لپاره فيډرل ريزرو اداره رامنځته نه کړه؛ نو امريکا له داسې اقتصادي بربادۍ سره مخ کيدای شي، چې مخکې ورسره نه وه مخ شوې.

دې دواړو سم وېلي وو، څکه په ۱۹۰۷ز کال کې چې په امريکا کې اقتصادي بحران راغی، امريکايي ولس يې ډېر وويروه او حکومت يې هم ولړځاوه. امريکايي حکومت د وار برګ او جيکف چيف طرحه عملي کړه او د فيډرل ريزو سيستم اعلان شو، چې قانون يې وروسته د ۱۹۱۳ز کال د دسمبر په ۲۳مه نيټه ولسمشر ووډرو ولسن توشيح کړ او پدې توګه په ۱۹۱۳ز کال فيډرل ريزرو ادارې رسماً کار پېل کړ.

اوس بايد مونږ پدې پوه شو، چې فيډرل ريزو له هغه وخته تر اوسه خپل مسوليتونه څنګه ترسره کوي، د امريکا په اقتصاد کې يې ونډه مثبته ده که منفي؟... دا به زمونږ اقتصادي تاريخ واضحه کړي دې اداره ته درې مهمې دندې سپارل شوې وې: لومړی دا چې د ټولو امريکايي بانکونو د نګرانۍ ترڅنګ دې هغوی د خپلو اصولو پابند کړي. دويم د امريکايي بانډونو د پېر او پلور په برخه کې په مالي پاليسۍ عمل او دريم د وصولۍ لپاره قوي سيستم رامنځه کول؛ خو مونږ وليدل چې ۱۲ دنيو بانکونو، د واليانو بورډ او د فيډرل اوپن کميټي سره يوځای فيډرل ريزرو، له حده تجاوز وکړ او په زياتره ځايونو کې يې د اصولو خلاف خپل واک وکاروه، د خپلو ورسپارل شويو مسوليتونو پرځای يې په نورو برخو کې لاسوهنې پېل کړې او له امله يې امريکايي اقتصاد مخ پر خوړ دی.

د ملټن فرايډمين او اينا شوارټنز دا وينا په تاريخ کې ثبت ده، چې وېل يې د ۱۹۳۰ز کال بحران هم د فيډرل ريزرو لخوا د سرو زرو په عرضه کې د بې نظمۍ له امله رامنځته شو، که دې ادارې خپلې مالي پاليسۍ ته پام کړی وای او د سرو زرو عرضه يې بنده کړې وای نو دا بحران به نه رامنځته کېده؛ خو فيډرل ريزرو د خپلې مالي پاليسۍ په کنټرول کې پاتې راغله د امريکايي بانډونو د پېر په پاليسې عملي کول او وصولي سيستم منظم ساتل ددوی له بنسټيزو دندو څخه وو؛ خو دوی چې خپل مسوليتونه څنګه ترسره کړل هغه زمونږ مخې ته دي

دا اداره چې د کوم هدف لپاره رامنځته شوې وه، هغه ترلاسه نه شو او پاليې يې د هرې نهيلي کونکې دي، دا د همدې فيډرل ريزرو برکت دی چې نن په نړۍ کې امريکايي ډالر خپل کېږي او د پوښتنې يې ځوک نشته د ډالرو په ارزښت کې چې له څه وخت کمي راپېل شوی تر اوسه دې ادارې کوم عملي اقدام ندی کړی د ډالرو د ارزښت د ثبات او قوت لپاره تراوسه کوم پلان يا پرمختګ ندی شوی، برعکس يې دا اوازه خپره کړې، چې د ډالرو ارزښت کمېدل د امريکايي اقتصاد قوت دی، اوس تاسو ووايئ چې زمونږ د کرنسي د اهميت کمېدل څنګه زمونږ په ګټه دي؟

# د بحران او موکو (فرصتونو) خپل منځي اړیکې

«په چینایي ژبه کې د بحران لغت دوه ماناوې لري، یوه خطر او بله موکه.. اوس ستاسو خوښه چې کومې یوې ته لومړیتوب ورکوئ» (جان ایف کینیډي)

«کومې ستونزې چې بې حله ګڼل کیږي هغه بې حله نه وي، بلکې یوازې څو اغېزې (Side effects) له خانه سره لري؛ خو په یاد مو وي، چې ستونزې بې له اغېزو نه حل کیږي.»

(لسټر تهرو)

زمونږ رهبرانو بهرنیو پانګوالو ته اجازه ورکړې چې، اقتصاد یخپلې خوښې کنټرول کړي، کوم بهرنیان چې مونږ خپل متحدین ګڼو، هغوی هېڅکله زمونږ متحدین نشي کېدای، پر مونږ کومه لویه حمله یا په نړۍ کې د ازاد ګرځېدو بندیز هم دومره خطر نه لري لکه د امریکایانو فضول خرڅي په کریډټ کارت پور مصرفونه مونږ ته ډېر خطر لري؛ نو امریکایان باید دا کلتور ډېر زر بدل کړي، ګني دا کلتور به د یوې سترې چاودنې شکل خپل کړي او هر وخت ددې امکان شته چې امریکا له مالي بحران سره مخ کړي
دا ډول بهرنی حالت رامنځته کېدل درې لاملونه لري: لومړی دا چې د سود د اندازې ټاکل د فیډرل ریزرو له لاسه وتي دي دویم دا چې بسه

او معیاري دنده له هیواد بهر تللي دي او درېیم دا چې د منځنیو دندو معاشونه پرلپسې کمېږي؛ نو امریکایان تر ډېره انفلاسیون نشي زغملای، تردې چې زمونږ پر کریډټ کارت او په ګروی اخستل شویو پورونو ولاړ اقتصاد هم دا حالت نشي کنټرول کولای او زمونږ دا خوښي به هم تر ډېره نه وي؛ نو حل لاره دا ده چې امریکایان اقتصادي کلتور بدل کړي او دروند اقتصادي حالت نزاکتونه درک کړي، له خپل ځادر سره پښې وغځوي ګني ډېر زر به کنګال شي.

د کرنسی په ارزښت د کنټرول نشتون:

دا هم په زړه پورې ده، چې یوازې د امریکایي مصرفوونکو، مصرفي پورونو له حده تجاوز ندی کړی، بلکې امریکایي حکومت هم پدې اړه بې بېلګه نده وړاندې کړې. په بهرنیو هیوادونو کې د زېرمې په شکل زمونږ د ډالرو، اعتبارونو او باندونو په پرتله زمونږ حکومت ډېرې پیسې مصرف کړې دي، همدا پور د ډالر د غورځېدو ستر لامل دی، ځکه د بهرنیو کرنسیو ګټه پدې کې نغښتې ده، چې ډالر راټیټ شي او په هغو هیوادونو کې انفلاسیون راکم شي. دویمه دا چې په مرکزي بانکونو کې زمونږ څومره ډالر پراته وي هغومره به پر ډالرو د هغوی واک ډېر وي او دا خطرناکه خبره ده. ما مخکې هم ویلي، څومره چې له نورو بانکونو سره امریکایي ډالر ډېر وي هومره به ورته خطر هم متوجه وي.

اوس پوښتنه دا ده. چې مونږ باید د آسیایي هیوادونو له اقتصادي ودې وو بېرېږو؟ ځکه په ۲۰۰۸ز کال کې د زیاترو آسیایي هیوادونو د اقتصادي ودې کچه نږدې ۹، ۸ سلنه وه، دا کچه ټکان ورکونکې ده، ځکه په تېرې لسیزې کې د امریکا حقیقي وده له ۵،۱- ۲ سلنه وه.

ددې برعکس د چین اقتصادي وده له ۱۹۹۰ کال څخه تراوسه پورې له ۹-۱۲ سلنه پورې ده، یانې په تېرو ۲۰ کلونو کې د چین اقتصادي وده په منځني ډول له ۱۰-۱۲ پورې او د یوه ګړندي اقتصاد په مانا ده پر چین سربېره نورو هیوادونو کې هم د اقتصادي ودې کچه د امریکا لس چنده ده. د بېلګې په ډول د امریکا پخواني حریف ویتنام، چې امریکا تباه کړی و، اوس د هغې اقتصادي وده هم د امریکا څلور چنده یانې ۲،۸ سلنه ده. د سنګاپور ۵،۷، ملیزیا ۱،۲، او جنوبي کوریا ۱،۵ سلنه ده. بې له جاپانه چې اوس یې نږدې یونیم سلنه ده، نورو د ټولو پورته یادو شویو هیوادونو اقتصادي حالت د امریکا د اقتصادي حالت په پرتله درې چنده ښه دی.

آیا له امریکا سره د ډالرو د قوت کچه کولو لپاره لدې بله ښه آله شته؟ فکر نه کوم. د امریکا د حکومت له اوسني حالت داسې ښکاري، چې انفلاسیون به لاپسې ډېرېږي، که امریکایي حکومت غواړي دا انفلاسیون کنټرول کړي؛ نو باید داسې لارې چارې ولټوي، چې د ډالرو ارزښت لوړ شي، خکه ددې سل فیصده امکان شته، چې آسیایي مرکزي بانکونه د ډالرو د ډېر مقدار په لرلو سره په ډالرو واکمن شي، بیا به دوی پخپلې خوښې ډالر ښکته او پورته کوي او مونږ به ورو ورو د آسیایي هیواد تر واک لاندې کېږو.

په آسیایي او اورپايي هیوادونو کې د ډالرو اوسني مېلان هسې هم شک زېږوونکی دی، څکه دا هیوادنه په لږ مقدار ډالر اخلي او بیا وروسته ډېر زیات پلوري، یانې د خپلو زېرمو څخه ډالر رډوباسي، په همدې توګه امریکایي باندونه هم په پراخه پېمانه پلورل کېږي، چې پایله یې هرومرو د ډالرو ارزښت راکمېدل دي

دا په امریکا کې د سود د لوړېدو لامل هم کیږي، په آسیایي هیوادونو کې انفلاسیون د هغو هیوادونو په کنترول کې دی؛ خو دا چې د هغوی کرنسی په ډالرو پورې تړلي دي؛ نو هغوی خپل انفلاسیون امریکا ته رالېږدولای شي

پردې سربېره پورونه او په بازار کې د ډالرو ارزانه پلور د امریکا د اسهامو په بازار مستقیمه اغېزه کولای شي. څکه له تېرو څو کلونو راهیسې ډالر خپل ارزښت له لاسه ورکوي، بهرني هیوادونه د امریکا د اسهامو د بازار په لس سلنو واکمن دي او پخپلې پانګونه لږه ګټه کوي ،که هغوی اړ شي چې خپل اسهام په بهرنیو بازارونو کې په ارزانه بیه وپلوري؛ نو دا امکان شته چې د امریکا د اسهامو بازار له سقوط سره مخ کړي، څکه په جنوب کې چې چې ډالر څومره ګرندي کیږي د بهرني پانګوال به یې پلور پیل کوي، چې امله به یې د اسهامو عرضه زر لوره شي، یا په بله وېنا ، څنګه چې بهرني پانګوال د اسهامو پلور پیل کړي؛ نو په امریکا کې به د توکو قیمتونه غورځېدل پیل شي، دا به یو حتمي پېښه وي او د خلاصون لپاره تړې هیڅ لاره نشته

له امریکا څخه د معیاري دندو انتقال:

امریکا نن سبا بهرنیانو ته د کار زوګار برابرولو کې کمی راوړی دی، پدې توګه یې یو څه کچه بستونه تش پرېښودي او دعوه کوي، چې نوي کاري موکې یې رامنځته کړي دي، دا اوازې په څانګړي دول د تاکنو په دور کې دېرې کېدې د امریکا په بازارونو کې کارکوونکو ته دېرې پېښې ورکول کېدې چې اوس یې کچه راکمه شوې ده، لامل یې دا دی، چې په بهر کې د ارزان بیو توکو د راڅرګندېدو له امله

کمپنۍ د مزدورانو پیدا کولو سیالي ته اړ شوې او له امله يې په امریکا کې د لوړ معاش دندې مخ په کمېدو دي

په امریکا کې د فابریکو مزدور په اوسط ډول د یوه ساعت ۱۷ ډالره معاش اخلي؛ خو ددې په پرتله په چین کې معاش په اوسط ډول د میاشتې ۲۰۰ ډالر دی او څو کاله مخکې همدا معاش ۱۰۵ ډالره و. اوس تاسو توپیر وګورئ، امریکايي مزدور چې په دوو اونیو کې څومره پیسې ترلاسه کوي د چین مزدور يې په ۲ کالو کې ګټي، چین چې د خپلو کم معاش لرونکو مزدورانو پرمټ کوم ارزانه توکي تولیدوي مونږ يې په ډېرو ګران معاشو مزدوران نشو تولیدولای او دا پدې مانا ده چې امریکا له چین سره سیالي نشي کولای

دا سیالي هغه وخت شونې ده، چې دلته هم معاشونه راټیټ شي، په امریکا کې اوس د لوړو معاشونو دور ختمېدونکی، چې امریکایانو ترې نه یوازې خوند اخسته بلکې د نورو خلکو په پرتله ډېر خوښ وو.

د نړیوالتوب (Globalization) له امله په امریکا کې معاشونه مخ په کمېدو دي. څکه زمونږ صنعتونه هم کمروزي کیږي، چې له امله يې نه یوازې له امریکا څخه لوړې معاش لرونکې دندې بهر ځي، بلکې د هغو دندو معاشونه هم ډېر کم دي، چې د لوړاوي ډنډورې يې کیږي. دا معاشونه د معیاري دندو ځای نشي نیولای او دا حالت مونږ په ټولې امریکا کې ګورو. لدې امله زمونږ صنعت له نورو هیوادونو سره سیالي نشي کولای او ورو ورو ساه بایلي

اوس باید پدې فکر وکړو، چې دا ستر بدلون څنګه راغی او تر شا يې کوم لاملونه پراته دي؟ددې بدلون لاملونه دومره خطرناک کیدای

شي چې د یو صنعتي انقلاب ور ونکوي او دا صنعتي انقلاب له امریکا څخه د آسیا خوا ته د صنعتونو انتقال دی

دا هم د یادونې وړ ده، چې د کمونیستانو او سوسیالستو مفکورو او د هند یوازې پرهېښودلو له پالیسۍ وروسته اقتصاد په ټوله نړۍ کې خپور شو او اوس زمونږ له واکه وځي. څکه زمونږ د پانګوالۍ نظام له ازاد بازار سره درې میلیاردو څخه ډېر خلک بوخای شوي دي، چې د پېچلتیا رامنځته کېدل یوکې طبیعي خبره ده. په چین، هند، ویتنام، عربي هیوادونو او پخواني شوروي اتحاد کې د پانګوالۍ وده باید مونږ معمولي خبره ونه ګڼو؛ بلکې دا یو غل بیا په نړیواله کچه اقتصادي جغرافیه بدلولای شي. لامل یې ښکاره او دا دی، چې د امریکا پانګوال له درې میلیارده خلکو سره په سیالۍ کې دي، دې سیالانو په امریکا سرګرخولی دی

کمونیست بلاک هیوادونه چې زمونږ دښمنان وو، ورسره د هیڅ ډول سوداګرۍ فکر هم نه کېده؛ خو اوس هغوی زمونږ سوداګریز همکاران دي، مونږ پوهېږو چې د هغو هیوادونو مزدوري ډېر ارزانه ده او دا یې په سوداګرۍ اغېزه کوي، داسې ورځ راروانه ده چې دا هیوادونه به له مونږ څخه مخکې کېږي او مونږ به مېدانه وباسي. یو ستر لامل یې په سود کې د فیډرل ریزرو کمی دی. مونږ له بهرنیو هیوادونو نوکې پېرو؛ خو پدا سې پور چې سود یې کم وي

ډالر څنګه وپلورل شي؟

په ۲۰۰۴ کال کې د خزانې وزیر جان سنو د ډالر د غورځېدو له امله له زیاترو صنعتي هیوادونو کتنه وکړه. څکه د پور د ورکړې کولو په اړه ډېر پرېشان و، هغه وخت په امریکا پور نږدې ۷ تریلیونه ډالره و. چې

د کال پرې نږدې ۳۵۰ میلیارده ډالر سود راته؛ خو په ۲۰۱۰ز کال کې دا پوروونه ۱۲ ټریلیونه شوي دي، چې سود یې نږدې یو ټریلیون ډالر کیږي. لدې امله فیډرل ریزرو او د خزانې وزارت په ګډه پرېکړه وکړه، چې د ډالرو ارزښت راکم کړي او د پوروونو خلاصول اسان شي او مونږ ډېر ډالر ترلاسه کړو.

امریکا د سرو زرو معیار پرېښود او ډالر اوس د نړیوالې کرنسۍ په حېث د نورو کرنسیو معیار دی. امریکا ټول پوروونه په ډالرو اخستي او بېرته یې باید په ډالرو ورکړي؛ نو فیډرل ریزرو ادارې فکر کړی و، چې که د ډالرو ارزښت راکم شي ددوی په ګټه به وي، ځکه کوم پوروونه چې مونږ اخستي وو، د هغوی مالیت ډیر وو اوس که د ډالرو ارزښت کم شي او مونږ دا پوروونه بېرته په هماغې مقدار خلاصوو؛ نو د ډالرو د کم ارزښت له امله به یې مالیت کم وي.

بېلګه یې دا ده، چې په ۱۹۹۰ز کال کې د یو اونس سرو زرو بیه ۲۰۰ ډالر وو، یانې ۲۰۰ ډالر د یوه اونس سرو زرو سره مساوي وو؛ خو اوس په ۲۰۱۰ کال کې د یوه اونس سرو بیه ۱۲۰۰ ډالرو ته رسېدلې دا پدې مانا شوه چې په ۱۹۹۰ز کال کې چې مونږ یو اونس سره زر د ۲۰۰ ډالرو په شکل پور اخستې، که اوس یې بېرته پور خلاصوو نو اصل پور به ۲۰۰ ډالر نه؛ بلکې د یوه اونس سرو زرو سره مساوي ۱۲۰۰ ډالر وي یانې له اصل پور څخه ۲۰ سلنه زیات خو دا چې امریکا د ډالرو ارزښت راکم کړی دی؛ نو د ډالرو په شکل به پور راوړو ته په ۲۰ سلنه کم ارزښت پور بېرته خلاصوي یانې امریکا ۱۲ ګرامه سره زر اخستي وو او اوس به بېرته یوازې ۲ ګرامه ورکوي

امریکا هم دا چل وکړ، دا چې په ډالرو یې پور اخستی و او بېرته یې هم باید په ډالرو پرې کړی وای؛ نو ډالرو ارزښت یې راکم کړ. پدې صورت کې امریکا بېرته پېسو په هماغه کچه ورکوي؛ خو ارزښت به یې کم وي. دې هوښیارو دا کار وکړ؛ خو په هوښیارۍ کې یې دا هیر کړل، چې د کوم هیواد کرنسي څومره ټیټیږي هومره ورسره انفلاسیون زیاتیږي، دا هوښیار خلک پدې پوه نه شول چې د ډالرو د ارزښت کمولو له امله به دوی دوه چنده پېسې ورکوي.

د بېلګې په ډول امریکایانو چې کوم توکي مخکې له بهرنیو هیوادونو څخه په یو ډالر پېرل اوس هغه توکي په دوه ډالرو پېري. یانې د امریکایي حکومت تر څنګ ۳ میلیارده امریکایي مصرفوونکي هم له بهر څخه د پېرل شویو توکو بیه دوه چنده ورکوي، ددوی نه معاش زیات شوی او نه امتیاز، بلکې په صنعتي سکتور کې خو یې معاشونه له پخوا هم راټیټ شوي دي، دا د فیډرل ریزرو او خزانې وزارت هوښیاري وه چې امله یې انفلاسیون او سوداګریز کسر ورځ تر بلې زیاتیږي.

په ۲۰۰۳ز کال کې د جاپان مرکزي بانک د ۱۸۷ میلیارده ډالرو معادل پېسې مصرف کړې او بیا یې د ۲۰۰۴ ز کال یوازې د جنوري په میاشت کې ۶۷ میلیارده ډالر مصرف کړل، دا کار یې یوازې خپلې کرنسۍ ته د اوږې ورکولو لپاره وکړ. لدې وروسته د جاپان بانک هره ورځ نږدې ۵.۱ میلیارده ډالر مصرفوول چې خپل (ین Yen) د ډالرو پر وړاندې قوي کړي.

زه فکر کوم، چې موږ باید د کرنسۍ د بازار، بانډونو او نورو برخای په کانونو او توکو پانګونه وکړو. څکه دا د پانګونې تر ټولو

خوندي لاره ده. په خانګړي ډول په نفتي زېرمو پانګونه ډېره ګټوره ده. څکه د نفتو بيې ورځ تر بلې لوړېږي او څومره چې د نفتو د کوهيانو کيندل ستونزمن وي هغومره به د نفتو استخراجوونکو شرکتونو ګټه زياته وي؛ نو پداسې شرکتونو پانګونه کول زمونږ لپاره ګټوره ده. پردې سربېره دا پانګونه خوندي هم ده او د ناڅاپي بازار غورځېدو څه اثار يې هم نه ليدل کيږي

د اقتصاد راتلونکی چې بې باوره او بې ثباته وي؛ نو په جامدې شتمنۍ پانګونه، مناسب اقدام دی په چين کې چې د ډېرو سکارو، مسو، اوسپنې، نفتو او نورو معدني موادو اړتيا نه وي ختمه شوې، د چين د معدنياتو بازار به د نړۍ له نورو هيوادونو نه قوي وي او بې اندېښنې پانګونه به پکې کيږي پدې توګه معدنياتو ګې سره زر ډېر مهم دي. په تاريخ کې چې کله هيوادونو زياته کرنسي چاپ کړې لومړی انفلاسيون رامنځته شوي او بيا کرنسۍ سقوط کړی دی. هيوادونو ډېرته د سرو زرو معيار ته مخه کړې او سرو زرو په ماضي کې د حقيقي کرنسۍ رول لوبولی دی. په راتلونکي کې به هم د سرو زرو رول د کرنسۍ په شکل تر ټولو قوي او مخکښ وي

اوس يو ځل بيا هغه وخت رارسېدلی، چې د ناسمو او بې مسوليته پالېسيو له امله مونږ له خطرناک اقتصادي حالت سره مخ يو. پدې حساسو شرايطو کې د ډالرو مرګ ته انتظار کول ندي پکار، مونږ بايد پرمخ لاړ شو او داسې يو اقدام وکړو. چې زمونږ لپاره ګټور وي. ددې کتاب په لومړيو کې ما ويلي وو چې (د توکو او خدماتو بيه يوازې په توکو او خدماتو ورکول کيږي)، څکه کاغذي کرنسي خپل کوم ارزښت نه لري، دا يوازې د وعدې لرونکی سند دی، چې تر شا يې هيڅ قوي شتمني نه وي

کله چې د خلکو يوه ډله له يوې ستونزې او سختۍ سره مخ شي؛ نور خلک بايد سبق ترې واخلي، اوس دا تاسو پورې اړه لري چې تاسو دې موضوع ته له کومه اړخه ګورئ کوم خلک چې پر ډالرو پانګونه کوي او ځان قوي کوي؛ نو د ډالرو له غورځېدو سره به د هغوی (د پېر قوت) هم ختم شي او کوم پانګوال چې، خپله پانګه نورو برخو او سکتورونو ته انتقالوي، له راتلونکو بدلونونو څخه به پوره ګټه واخلي

(پای)